

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولو کور دی
د پښتون او هزاره وو
ورسره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېواد به تل ځلیږي
په سینه کې د آسیا به
نوم د حق مو دی رهبر

دا عزت د هر افغان دی
هر بچی یې قهرمان دی
د بلوڅو د ازبکو
د ترکمنو د تاجکو
پامیریان، نورستانیان
هم ایماق، هم پشه یان
لکه لمر پر شنه آسمان
لکه زړه وي جاویدان
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# اسلامي ښوونه او روزنه

## اووم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ ش.

# د کتاب ځانګړتیاوې

---

**مضمون:** اسلامي ښوونه او روزنه

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي ښوونې او روزنې دیپارټمنت د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارټمنت غړي

**ټولګی:** اووم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

---

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# د لوستونو شمېرې



لومړی لوست

# د حدیث شریف د علم پېژندنه

حدیث شریف چې د اسلامي شریعت دویم مصدر دی، نو پدې باید وپوهېږو چې کوم علم د پیغمبر ﷺ له سنتو څخه بحث کوي. هغې ته د حدیث شریف علم ویل کېږي.

## د حدیثو د علم تعریف، موضوع او غرض

**د حدیث د علم تعریف**: (حدیث) په لغت کې: خبرو او هر نوي منځ ته راغلي شي ته وایي. او په اصطلاح کې له هغه علم څخه عبارت دی چې د پیغمبر ﷺ قول فعل، او تقریر د متن او سند له لحاظه څېړي.

**د حدیث د علم موضوع**: د پیغمبر ﷺ وینا، کړنه او تقریر دی.

**د حدیث د علم غرض**: د پیغمبر ﷺ ربښتنې پیروي ده چې په دواړو جهانونو کې د انسان د سعادت او نیکمرغۍ لامل ګرځي.



### فعالیت

زده کوونکي دې په ډله ییزه توګه د ښوونکي په ملتیا د حدیث د علم د موضوع او غرض تر منځ د توپیر په اړه بحث او مباحثه وکړي.

## د حدیث د علم له ځینو اصطلاحاتو سره اشنایي:

۱- **تقریر**: له تقریر څخه مطلب دا دی چې یو یا څو تنو اصحابو یوکار سرته رسولی وي او یا یې کومه خبره کړې وي او پیغمبر ﷺ په هغه باندې له پوهېدلو وروسته د هغه په باره کې چوپتیا اختیار کړې وي.

۲- **صحابي هغه څوک دی** چې پیغمبر ﷺ یې لیدلی، ایمان یې پرې راوړی او د ایمان په حالت کې وفات شوی وي.

۳- **تابعي هغه څوک دی** چې د اسلام په حالت کې یې له صحابي سره ملاقات شوی وي او په همدې حالت کې وفات شوی وي.

## حدیث شریف دوه برخې لري:

**الف- متن**: له هغو الفاظو څخه عبارت دی چې د پیغمبر ﷺ له ویناوو، کړنو او تقریر څخه حکایت کوي.

**ب- سند**: د حدیث راویانو د نومونو له لړۍ څخه عبارت دی.




- زده کوونکي دې په ډله ییز ډول د لوست د اصطلاحاتو په باره کې له یو بل څخه وپوښتي.

## د حدیث شریف ډولونه

حدیث د راویانو د شمیر له مخې په درې ډوله دی:

متواتر، مشهور او آحاد.

### ۱- متواتر حدیث

هغه حدیث ته ویل کیږي چې د راویانو شمیر یې دومره زیات وي چې اتفاق کول یې په دروغو محال او غیر ممکن وي.

د متواتر حدیث شرطونه:

الف: د راویانو شمیر یې زیات وي.

ب: د راویانو اتفاق کول یې په دروغو محال وي.

ج: د راویانو شمیر یې په ټولو طبقو کې د تواتر له اندازې کم نه وي.

**۲-مشهور حدیث**

هغه حدیث ته ویل کیږي چې د پیغمبر ﷺ په زمانه کې یې د راویانو شمېر کم وي خو د تابعینو په زمانه کې مشهور شوی وي او د راویانو شمیر یې په ټولو طبقو کې د تواتر اندازې ته نه وي رسیدلی.

**۳- آحاد**

له هغه حدیث څخه عبارت دی چې د راویانو شمیر یې د مشهور اندازې ته نه وي رسیدلی او یا دا چې د مشهور حدیث ټول شرطونه پکې پوره نه وي.




- زده کوونکي دې د متواتر حدیث فرق له مشهور او آحاد سره په ډلییز ډول بیان کړي.




۱- د حدیث د علم تعریف، موضوع او غرض بیان کړئ.

۲-متواتر حدیث تعریف او شرطونه یې بیان کړئ.

۳- مشهور او آحاد حدیث بیان کړئ.




زده کوونکي دې د حدیث لغوي او اصطلاحي تعریف په خپلو کتابچو کې ولیکي او تکرار یې کړي او دا چې صحابي او تابعي څوک دي؟



دويم لوست

# د حديث شريف تدوين

په لومړي لوست کې مو د حديث د علم او د هغه د اقسامو په اړه معلومات ترلاسه کړل، په دې لوست کې به د احاديثو د راټولولو او ليکلو په هکله خبرې وکړو.

آيا تاسو پوهيږئ چې څرنګه احاديث راټول شوي او ليکل شوي دي؟

## لومړۍ مرحله

اصحابو کرامو به د پيغمبر ﷺ په ژوند کې هغه ټولې خبرې، کړنې او تقريرونه زده کول، عمل او استدلال به يې ورباندې کاوه او ځينې اصحابو سربيره پر دې ليکل هم.

خو د پيغمبر ﷺ له رحلت څخه وروسته ځينو اصحابو ته دا احساس پيدا شو چې نبوي احاديث بايد وليکل شي، ترڅو د احاديثو حفاظت او ساتنه وشي، په همدې خاطر د احاديثو د ليکلو لړۍ پيل شوه. د احاديثو د تدوين لومړۍ مرحله د اصحابو په دور کې د پيغمبر ﷺ له وفات څخه وروسته پيل شوه او همدا د احاديثو د ليکلو لومړی پړاو و.




- زده کوونکي دې د تدوين د معنا او د احاديثو د تدوين د پيل په اړه په خپلو کې سره بحث وکړي.

## په رسمي ډول د احاديثو د تدوين دويمه مرحله

کله چې حضرت عمر بن عبدالعزيز د هجرت په (۹۹) کال د مسلمانانو خليفه شو؛ تصميم يې ونيو ترڅو احاديث جمع او تدوين کړي او په دې کار کې يې دوه هدفونه په نظر کې وو چې په لاندې ډول دي:

### ۱. دا چې په نبوي احاديثو کې دروغ ګډ نه شي

کله چې اسلامي فتوحات زيات شول او د مختلفو اديانو خلک د اسلام په دين مشرف شول د دې ويره پيدا شوه چې د اسلام دښمنې ډلې د پيغمبر ﷺ په احاديثو کې لاسوهنه

ونه کړي او له ځانه جوړ شوي احادیث د پیغمبر ﷺ په احادیثو کې ورګډ نه کړي.

## ۲. دا چې نبوي احادیث ضایع نه شي

د وخت په تیریدو او د اصحابو د شهادت او وفات له کبله، د دې ویره وه چې نبوي احادیث به له منځه لاړ شي بناءً د مسلمانانو خلیفه عمر بن عبدالعزیز خپلو والیانو ته، چې د هغوی له جملې څخه محمد بن عمروبن الحزم ته چې د مدینې منورې والي و، دنده ورکړه چې د وخت مشهور عالم محمد بن شهاب الزهری په مرسته نبوي احادیث راټول او د کتاب په شکل کې ولیکي. دغه کار یواځې په مدینه منوره کې نه، بلکې ډېرو علماوو په مکه، عراق، بصره او کوفه کې د دې کار په سرته رسولو کې برخه واخیسته.

له دې وروسته د نبوي احادیثو د راټولولو او تدوین کار دوام وموند او ټول احادیث په خورا غټو کتابونو کې تالیف شول چې مشهور کتابونه یې په لاندې ډول دي:

| شمېره | د کتاب نوم | د لیکونکي نوم او د تولد نېټه | د وفات نېټه |
|---|---|---|---|
| ۱ | صحیح البخاري | محمدبن اسماعیل بخاري (رح) ۱۹٤هـ | ۲۵٦ هـ |
| ۲ | صحیح مسلم | مسلم بن حجاج نیشاپوري (رح) ۲۰٤ هـ | ۲٦۱ هـ |
| ۳ | جامع ترمذي | محمد بن عیسی ترمذي (رح) ۲۰۹ هـ | ۲۷۹ هـ |
| ٤ | سنن نسایي | سلیمان بن اشعث سجستاني (رح) ۲۰۲ هـ | ۲۷۵ هـ |
| ۵ | سنن ابن ماجه | محمد بن یزید قزویني (رح) ۲۰۹ هـ | ۲۷۳ هـ |
| ٦ | سنن ابوداوود | احمدبن شعیب نسایی (رح) ۲۱۵ هـ | ۳۰۳ هـ |
| *دغه فقره اضافي معلومات دي، د زده کوونکو لپاره په امتحان کې شامل نه دي. | | | |

## ارزونه

۱- آیا د احادیثو تدوین د پیغمبر ﷺ په زمانه کې موجود و؟
۲- د کوم خلیفه په وخت کې د احادیثو تدوین پیل شو؟
۳- د احادیثو د مشهورو کتابونو نومونه ولیکئ.

## کورنۍ دنده

د احادیثو د تدوین او د هغو د سترو علماوو په اړه خپل معلومات ولیکئ.





# نيت او اخلاص

**عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ (رَضِيَ اللهُ عَنْهُ) قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) يَقُولُ: «إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ، وَإِنَّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوَى، فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى اللهِ وَرَسُولِهِ فَهِجْرَتُهُ إِلَى اللهِ وَرَسُولِهِ، وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ لِدُنْيَا يُصِيبُهَا أَوْ امْرَأَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهُ إِلَى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ».** [متفق عليه]

## د راوي پيژندنه

نوم مبارك يې عمر، د پلار نوم يې (خطّاب) كنيه يې (ابوحفص) او لقب يې (فاروق) دی. د مسلمانانو دويم خليفه دی. له بعثت څخه تقريباً (۳۰) کاله د مخه زيږېدلی، او د نبوت په شپږم کال په اسلام مشرف شوی او له برکته يې اسلام او مسلمانانو قوت وموند.

د ده د خلافت په دوران کې شام، مصر، فلسطين، بيت المقدس او عراق فتح شول، د هجرت په(۲۳)کال د يوه مجوسي غلام له خوا چې ابولؤلؤ نوميده، پداسې حال کې چې د سهار د لمانځه په امامت ولاړ و، په خنجر ووهل شو او د (۶۳) کلنۍ په عمر په شهادت ورسيد. وروسته د پيغمبر ﷺ او ابوبکر صديق رضي الله عنه ترڅنګ خاورو ته وسپارل شو.



## فعاليت

- زده کوونکي دې، د راشدو خلفاوو د نومونو او په ځانګړې توګه د حضرت عمر (رضی الله عنه) په باره کې، په ډله ييز ډول بحث او مباحثه وکړي.

## د کلمو معنا

١. النِّيَّاتِ: د (نیت) جمع ده، قصد او ارادې ته وايي.

٢. نَوَى: نیت یې وکړ.

٣. امْرَأَةٍ: ښځه.

٤. امْرِئٍ: کس (نر وي او که ښځه)

٥. يُصِيبُهَا: لاس ته یې راوړي.

٦. هَاجَرَ: هجرت یې وکړ.

## د حدیث شریف معنا

له حضرت عمر رضي الله عنه څخه روایت دی، فرمایي: ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه واورېدل چې ویې فرمایل: ټول اعمال یواځې له نیت سره تړاو لري او بس.

هر چا ته به هغه څه وي چې نیت یې کړی وي. که یو چا د الله او د الله د رسول د رضا او خوښۍ لپاره هجرت وکړ؛ نو هجرت یې د الله تعالی او د الله د رسول لپاره دی، یعنی الله تعالی به ورته پرې اجر او ثواب ورکوي.

او که یې هجرت د دنیا د لاس ته راوړلو لپاره کړی وي چې هغه لاس ته راوړي او یا یې هجرت له ښځې سره د نکاح په خاطر کړی وي چې نکاح ورسره وکړي نو په حقیقت کې یې هجرت د هماغه څه لپاره دی چې نیت یې ورته کړی وي.

## د نیت معنا او هدف

(نیت) په لغت کې د زړه قصد او ارادې ته وايي. په پورتني حدیث شریف کې له نیت څخه مقصد هغه هدف دی چې ورته د رسېدلو په خاطر انسان کار کوي او نیت عبادت له عادت څخه جلا کوي.

## د حدیث شریف حکمت

په کومه ټولنه کې چې وګړي د نیکو کارونو په سرته رسولو کې ریاکاري کوي او په باطن کې د هغو خلاف نیت لري، په دې سره د خلکو په منځ کې دوکه، چل، دروغ ویل، بې اعتمادي او نفاق پیدا کیږي.

خو د دې پر خلاف په کومه ټولنه کې چې وګړي د خدای ﷻ د رضا په خاطر نیک کارونه سرته رسوي، رښتینولي، سپېڅلتیا، مینه او اعتماد رامنځ ته کېږي، نو لازمه ده چې مسلمانان د خدای تعالی د رضا د لاس ته راوړلو لپاره په ټولو کارونو کې د نیت پاکوالي ته پام وکړي او وهڅول شي.




- زده کوونکي دې، په ډله ییز ډول د ښوونکي په مرسته د ریا ضررونه او د اخلاص ګټې بیان کړي.

### د حدیث شریف ګټې:

۱- د نیت اهمیت: الله تعالی ته یواځې هغه عمل قبول او د ارزښت وړ دی چې په ښه نیت یعنې یواځې د ده د رضا لپاره پیل شوی وي.

۲- د ریا ضرر: هر کار چې د ریا په خاطر تر سره شوی وي نه یواځې دا چې الله تعالی ته قبول نه دی، بلکې ګناه ګڼل کېږي.

۳-هجرت: له مکې مکرمې څخه مدینې منورې ته هجرت کول ډېر خطرناک او ګران کار و او د متعهد مسلمان یوه نښه وه، خو بیا هم ثواب او اجر یې په نیت پورې تړلی دی، که چېرې هجرت د الله تعالی د رضا د لاس ته راوړلو لپاره وي؛ ثواب لري او که چېرې د دنیوي کارونو په خاطر وي، اجر او ثواب نه لري.

## ارزونه

۱- د اعمالو ثواب په څه پورې اړه لري؟

۲- د حدیث معنا بیان کړئ.

۳- د ریا او ځان ښودنې زیانونه څه دي؟

## کورنۍ دنده

۱- د دې لوست حدیث له ژباړې سره ولیکئ.

۲- د حدیث دغه عبارت (**إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ وَإِنَّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوَى**) یادکړئ.





# خير غوښتنه

**عن أبي حَمزَةَ أنسِ بنِ مالك رضي الله تعالى عنه خادِمِ رسولِ الله صلى الله عليه وسلم عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: «لا يُؤمِنُ أحدُكُمْ حتَّى يُحِبَّ لأخيه ما يُحِبُّ لنفسه». [متفق عليه]**

## د راوي پېژندنه

نوم يې انس بن مالك، د انصارو له جملې څخه يو جليل القدر صحابي دی، پوره لس کاله يې د رسول الله په خدمت کې تېر کړي دي او د فقهاوو صحابه وو له جملې څخه دی. پيغمبر ﷺ ورته داسې دعا کړې ده چې عمر دې اوږد، په مال او اولاد کې دې برکت شه او جنت دې نصيب شه. نوموړی صحابي د هجرت په(۹۳) کال وفات شوی دی.

## د کلمو معنا

| | |
|---|---|
| لا يُؤمِنُ أحدُكُمْ: | نشي کېدای يو له تاسو پوره مؤمن |
| حتَّى يُحِبَّ لأخيه: | ترڅو خوښ کړي د خپل ورور لپاره. |
| ما يُحِبُّ لنفسه: | هغه څه چې ځان ته يې خوښوي. |

## د حديث شريف معنا

له حضرت انس (رضي الله عنه) څخه روايت دی چې پيغمبر ﷺ وفرمايل:
هيڅوك د پوره ايمان خاوند کېدای نشي ترڅو خپل مسلمان ورور ته هغه څه خوښ کړي، کوم چې ځان ته يې خوښوي.

## د حديث شريف حکمت

د کومې ټولنې وګړي چې خير غوښتونکي او د خير رسونې په فکر کې وي او د داسې ژوند په هڅه کې وي چې يو له بل سره ښېګڼه وکړي، ټولنيزو ګټو ته پکې پاملرنه وشي او هيڅکله ټولنيزې ګټې د شخصي ګټو قرباني نه شي، نو له هر اړخه به يوه قوي او پياوړې ټولنه وي.

خو که وګړي يې ځان غوښتونکي وي، ځان ته د ګټې او نورو ته د ضرر رسولو په هڅه کې وي، په دې صورت کې به په دغه ټولنه کې دښمني، کينې او حسد ځای نيسي.

نو په کار ده چې په مسلمانانو کې، نورو ته د خیر رسولو احساس را ژوندی او ټول دېته وهڅول شي. له منفعت طلبۍ، ځان غوښتنې او د شخصي ګټو لپاره د عامه ګټو له قرباني کولو څخه منعه کړای شي.

## فعالیت

- زده کونکي دې په ډله ییز ډول د خیر غوښتنې ګټې او د ځان غوښتنې ضررونه بیان کړي.

**د حدیث شریف ګټې:**

١. له ځان غوښتنې څخه ډډه کول: هغه ځان غوښتونکی انسان چې خپلې ګټې د نورو په ضرر کې لټوي، کامل مسلمان نه دی.

٢. د ایمان کمال: د یو مسلمان ایمان هغه وخت پوره کیږي چې د نورو لپاره هم خیرغوښتونکی وي.

٣. مؤمن د مؤمن ورور دی: د یو مسلمان اړیکې له بل مسلمان سره له نسبي ورورګلوۍ څخه ډېرې پیاوړې وي.

٤. په خیر غوښتنې باندې ټینګار: پیغمبر ﷺ په دې حدیث شریف کې مسلمانان خیر غوښتنې ته رابللي او له ځان غوښتنې څخه یې منع کړې دي.

## ارزونه

١- د حدیث دګټو په اړه خپل معلومات ووایاست.

٢- نورو ته له خیر غوښتنې څخه مقصد څه دی؟ له مثال سره یې بیان کړئ.

٣- د حدیث شریف معنا بیان کړئ.

## کورنۍ دنده

١- د خیر غوښتنې د اهمیت په باره کې، یوه مقاله ولیکئ چې له پنځو کرښو څخه کمه نه وي.

٢- پورتنی حدیث شریف حفظ کړئ.





## د مسلمان په وړاندې د مسلمان مسؤولیت

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يَخْذُلُهُ وَلَا يَحْقِرُهُ، التَّقْوَى هَاهُنَا (وَ يُشِيرُ إِلَى صَدْرِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ) بِحَسْبِ امْرِئٍ مِن الشَّرِّ أَنْ يَحْقِرَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ، كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ دَمُهُ وَمَالُهُ وَعِرْضُهُ». [رواه مسلم]

### د راوي پېژندنه

نوم یې عبدالرحمن بن صخر الدوسي، لقب یې (ابوهریره) او د هجرت په اووم کال مسلمان شوی دی. ډېره موده یې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم خدمت کړی، له همدې امله یې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه ګڼ شمیر احادیث روایت کړي دي. دغه جلیل القدر صحابي په تقوی او پرهیزګارۍ مشهور او د لوړ ذکاوت خاوند و او د هجرت په (۵۸) کال کې وفات شوی دی.

### د کلمو معنا

| | |
|---|---|
| ۱- لَا يَظْلِمُهُ: | پر هغه ظلم نه کوي. |
| ۲- وَلَا يَخْذُلُهُ: | او هغه یې ملاتړ نه پرېږدي. |
| ۳- وَلَا يَحْقِرُهُ: | او هغه نه سپکوي. |
| ۴- التَّقْوَى: | پرهیزګاري. |
| ۵- بِحَسْبِ امْرِئٍ: | بس ده یو انسان ته. |
| ۶- عِرْض: | ناموس، عزت، آبرو. |

## د حديث شريف معنا

له ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې پيغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمايل:

مسلمان د مسلمان ورور دی، نه په خپله وربانديې ظلم کوي او نه يې د مظلوميت پر مهال بې ملاتړه پرېږدي او نه هغه سپکوي. د حديث راوي ابوهريره رضي الله عنه وايي چې په دې وخت کې پيغمبر صلی الله علیه وسلم خپلې سينې ته اشاره وکړه او درې ځلې يې وفرمايل: تقوی په دې ځای کې ده، د يو چا د بدوالي لپاره همدا کافي ده چې خپل مسلمان ورور سپک کړي او د هر مسلمان وينه، مال او آبرو پر بل مسلمان باندې حرام دي.




- زده کوونکي دې د دې حديث شريف په اړه مباحثه وکړي.

## د حديث شريف حکمت

ورور ګلوي، مرسته، يو بل ته درناوی د نورو خلکو پر نفس، مال او آبرو له ظلم او تيري څخه ځان ساتل، له مظلوم څخه دفاع او له الله تعالی څخه وېره، د يوې سالمې ټولنې له اساساتو څخه دي او له دې پرته په ټولنه کې د نظم راوستل اصلاً ممکن نه دي. ځکه خو پيغمبر صلی الله علیه وسلم په خپلو (جوامع الکلم) عبارتونو کې، پورتني پراخه مفاهيم او مطالب بيان کړي دي.

**د حديث شريف گټې:**

۱- اسلامي ورور گلوي: يو مسلمان د بل مسلمان ورور دی، البته نارينه د نورو ورونړه اوښځينه د نورو خويندې گڼل کېږي، کله چې ټول سره ورونړه او خويندې شول؛ نو لازمه ده هغه حقوق او وجايب چې ورونړه او خويندې يې يو د بل په وړاندې لري، د خپل توان په اندازه رعايت کړي.

۲- د ظلم حراموالی: ظلم د حق پايمالولو ته وايي، هر ډول تيري او ناحقه لاس وهنې په کې شامليږي، ظلم که په هر رنگ او هره بهانه وي؛ حرام دی.

۳- له مظلوم څخه دفاع کول: مسلمان ته نه ښايي چې خپل مسلمان ورور د مظلوميت پر مهال يواځې پرېږدي، بلکې ملاتړ يې ورباندې لازم دی.

٤- له سپکاوي څخه منع: د نورو سپکاوی او ذليلول حرام دي.

٥-د نورو درناوی: مسلمان بايد د نورو درناوی وکړي ترڅو هغوی يې هم درناوی وکړي.

٦- اصلي تقوا باطني تقوا ده: ځکه چې که چېرې په باطن کې له الله تعالی څخه ويره نه وي؛ د انسان ټول کارونه په ريا او نفاق بدلېږي.

٧- تر ټولو لوی شر: د مسلمان ورور سپکاوی دی.

۸- د نورو پر نفس تېری کول حرام دي: پر نفس باندې د تجاوز ټول ډولونه، لکه: وژل، تعذيبول، وهل او ټکول او له يو بل سره جنگ کول په اسلامي ټولنه کې حرام دي.

۹- د نورو پر مال تېری کول حرام دي: د نورو پر مال، حقونو او گټو باندې هر ډول تېری کول په اسلامي ټولنه کې حرام دي.

۱۰- د نورو خلکو پر آبرو او عزت تيری کول حرام دي: په اسلامي ټولنه کې د انسانانو آبرو، عزت او عفت خوندي وي او هر ډول تېری ورباندې حرام او ناروا دی.

## ارزونه

۱- مسلمانان په خپلو کې یو د بل پر وړاندې څه مسؤولیتونه لري؟

۲- لاندې عبارتونه تکمیل کړئ:

«الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ لَا........ وَلَا.......... وَلَا يَحْقِرُهُ».

«كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ....... وَ......... وَعِرْضُهُ».

## کورنۍ دنده

۱- د دې لوست حدیث له معنا سره ولیکئ.

۲- لاندې عبارتونه په یادو زده کړئ:

**«الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يَخْذُلُهُ وَلَا يَحْقِرُهُ».**

**«كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ دَمُهُ وَمَالُهُ وَعِرْضُهُ».**

# نیک اخلاق

عَن النَّوَّاس بْنِ سَمْعَان (رضی الله عنه) قَالَ: سَأَلْتُ رَسُول الله (صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ) عَن الْبِرّ وَالْإِثْمِ؟ قَالَ: «الْبِرّ حُسْن الْخُلُق، وَالْإِثْم مَا حَاكَ فِي نَفْسك، وَكَرِهْتَ أَنْ يَطَّلِع عَلَيْهِ النَّاس» [رواه مسلم]

## د راوي پېژندنه

نوم يې نواس د سمعان زوی او له شامي راويانو څخه دی چې په مدينه منوره کې اوسيده. اووه لس (١٧) حديثونه يې له پيغمبر ﷺ څخه روايت کړي او د هجرت په(٥٠) کال کې وفات شوی دی.

## د کلمو معنا

١- الْبِرّ: نېکي.
٢- حُسْن الْخُلُق: نېک اخلاق.
٣- الْإِثْم: گناه.
٤- مَا حَاكَ فِي نَفْسك: هغه څه چې په زړه کې دې شک پيدا کړي.
٥- كَرِهْت: بد وګڼې.
٦- يَطَّلِع: خبر شي.

## د حديث شريف معنا

حضرت نواس بن سمعان رضي الله عنه وايي چې ما له پيغمبر ﷺ څخه د نېک عمل او ګناه په اړه پوښتنه وکړه. حضرت محمد ﷺ وفرمايل: نېک عمل ښه خوی دی او ګناه هغه ده چې په زړه کې دې شک پيداکړي او دا نه خوښوې چې خلک پرې خبر شي.

## فعاليت

- زده کوونکي دې د نېکو اخلاقو مثالونه په ډله ييز ډول بيان کړي.

## د حدیث شریف حکمت

د اسلام د ستر پیغمبر ﷺ لارښوونې، د مسلمان تربیتي سطحه دومره لوړوي چې زړه يې کاملاً پاکېږي د هغه د ژوند هر حرکت نېك اخلاق تمثیلوي او ورو ورو په مسلمان کې داسې يو قوت پيدا کوي چې پرته له بهرني فشار څخه په خپله له بدو اعمالو څخه ډډه کوي او هېڅکله پدې هڅه کې نه وي چې څرنګه د قانون او نظام له منګولو څخه ځان وژغوري.

### فعالیت

- زده کوونکي دې د ښو اخلاقو ګټې او د بدو اخلاقو د ضررونو په هکله بحث او خبرې وکړي.

**د حدیث شریف ګټې:**

۱- ښه اخلاق د ټولو نیکیو بنسټ دی، ځکه چې ښه اخلاق انسان نیکۍ او دوستۍ ته رابولي او له بدیو څخه يې منع کوي او بد اخلاق يې دښمنۍ او اختلاف ته را بولي.

۲- ګناه څه شی ده؟ هر هغه کار چې پاك نفس يې په کولو شرمېږي او نه غواړي چې خلك ورباندې خبر شي، ګناه بلل کېږي.

۳- ګناه فطرتاً مبغوض عمل دی: ګناه هغه ناوړه عمل دی چې حتی مرتکب يې هم نه غواړي چې خلك ورباندې خبر شي.

### ارزونه

۱- د پورتني حدیث شریف معنا او د راوي پېژندنه بیان کړئ.

۲- لاندې کلمې معنا کړئ:

الْبِرّ:..........حُسْن الْخُلُق:...............الا ثْم:................مَا حَاكَ فِي نَفْسك:............

۳- د ټولنې په اصلاح کولو کې نېك اخلاق څه رول لري؟

### کورنۍ دنده

د دې لوست حدیث شریف له معنا سره ولیکئ.





# شفقت او مهرباني

**عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا) أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ قَالَ: «الرَّاحِمُونَ يَرْحَمُهُمُ الرَّحْمَنُ، ارْحَمُوا مَنْ فِى الأَرْضِ، يَرْحَمْكُمْ مَنْ فِى السَّمَاءِ».**

[رواه ابوداود والترمذی]

## دراوي پېژندنه

نوم يې عبدالله د پلار نوم يې عمرو و، زوی او پلار دواړه صحابه وو، خورا عالم او فاضل و، د قرآن عظيم الشان له مشهورو قاريانو څخه و، ډېر احاديث يې له پيغمبر (صلی الله عليه وسلم) څخه روايت کړي دي او د هجرت په (٦٥) کال وفات شوی دی.

## د کلمو معنا

١- الرَّاحِمُونَ: رحم کوونکي.

٢- ارْحَمُوا: رحم وکړئ.

٣- يَرْحَمْكُمْ: پر تا سو به رحم وکړي.

٤- مَنْ فِى الأَرْضِ: څوک چې په ځمکه کې دي.

٥- مَنْ فِى السَّمَاءِ: هغه ذات چې له تاسو بردی.

## د حديث شريف معنا

له حضرت عبدالله بن عمرو څخه روايت دی چې پيغمبر ﷺ وفرمايل: رحم کوونکو باندې الله تعالی رحم کوي، نو تاسې په ټولو هغو ژونديو چې پر ځمکه ژوند کوي، رحم وکړئ ترڅو هغه ذات چې بر دی، پر تاسو رحم وکړي.

## د حديث شريف حکمت

مهرباني او زړه سوی چې د اخلاقو يوه مهمه ستن ده، يوه داسې رسۍ ده چې ټول موجودات يې سره تړلي او يو له بل سره يې مرستې او غمخوارۍ ته اړ کړي دي، د زړه له سختۍ، بې رحمۍ او د نورو په حق کې له تېري کولو څخه يې لرې ساتي.

له بل پلوه پر مخلوقاتو باندې په شفقت او ترحم سره، بنده د الله ﷻ له قهر او غضب څخه په امان کې وي چې په نتيجه کې ټول مخلوقات د آرامۍ او اطمينان په فضاء

کې خپل ژوند تېروي، بناءً که د یوې ټولنې وګړي یو پر بل مهربانه وي، کارونه به یې په آسانۍ سره مخ پر وړاندې ځي، ستونزې به یې حل وي او دښمني، د زړه بدوالی او کینې به یې په محبت او مینه بدلېږي.

**د حدیث شریف ګټې:**

۱- رحمت او مهرباني: مهرباني د الله تعالی له خاصو صفتونو څخه یو صفت دی. هر څومره چې دا صفت د انسان په وجود کې وي؛ په همغه اندازه د الله تعالی د رحمت او مهربانۍ مستحق ګرځي.

۲- د ترحم د دایرې پراخوالی: د پیغمبر ﷺ په لارښوونو کې ترحم او زړه سوی دومره پراخه مفهوم لري چې ټول موجودات رانغاړي.

۳- ترحم او مهربانۍ ته هڅول: الله تعالی خپله مهرباني او ترحم، پر مخلوقاتو باندې د ترحم او مهربانۍ کولو پورې تړلې ده.




- زده کوونکي دې پرمخلوقاتو باندې د ترحم بیلګې ووایي په دې اړه دې بحث وکړي.




۱- د دې لوست حدیث شریف معنا کړئ.

۲- لاندې کلمې معنا کړئ.

۱- الرَّاحِمُونَ:....... ۲-ارْحَمُوا:...... ۳-يَرْحَمْكُمْ:.....٤-مَنْ فِى الأَرْضِ:......




۱- د ترحم او مهربانۍ په هکله یوه لنډه مقاله ولیکئ.

۲- لاندې عبارات حفظ کړئ:

«الرَّاحِمُونَ، يَرْحَمُهُمُ الرَّحْمَنُ، ارْحَمُوا مَنْ فِى الأَرْضِ، يَرْحَمْكُمْ مَنْ فِى السَّمَاءِ.»

اتم لوست

# طهارت (پاکوالی)

نن په نړۍ کې پاکوالي ته ځانګړې پاملرنه کېږي، پوهان ټل خلکو ته دا سپارښتنه کوي چې خپل ځان او چاپېریال پاک وساتي.

نو طهارت او پاکي په اسلام کې څنګه ده ؟ او څه اهمیت لري ؟

**۱. د طهارت تعریف**

(طهارت) په لغت کې: پاکوالي ته وايي.

او د فقهاوو په اصطلاح کې: د بې اودسۍ او نجاست لرې کول، طهارت بلل کېږي.

## فعالیت

- یو زده کوونکی دې د لمانځه د شرطونو نومونه واخلي.
- بل زده کوونکی دې د دې جملې نه هغه شرطونه په ګوته کړي چې له طهارت سره ارتباط لري.

**۲. د طهارت مشروعیت**: پیغمبر اکرم ﷺ وايي: (اَلطُّهُورُ شَطرُ الاِیمَانِ)[مسلم]

**ژباړه**: نظافت د ایمان جز دی.

د حدیث شریف مفهوم دا دی چې طهارت په اسلام کې دومره اهمیت لري چې مستقیما له ایمان سره رابطه لري، نو که څوک غواړي چې ایمان یې کامل شي باید د خپل ځان او چاپیریال نظافت ته ډېر پام وکړي.

**۳. د طهارت یا پاکوالي ډولونه**

طهارت یا پاکوالی په دوه ډوله دی:

الف - حکمي پاکوالی: له جنابت او وړې بې اودسۍ څخه پاکوالي ته، حکمي پاکوالی وایي.

ب - حقیقي پاکوالی: له نجاست څخه پاکوالي ته، حقیقي پاکوالی وایي.

**۴. د پاکوالي طریقه**: له حکمي نجاست څخه پاکوالی په غسل، اودس او تیمم سره راځي، خو له حقیقي نجاست څخه پاکوالی په پاکو او سوچه اوبو د هغه نجس ځای په مینځلو سره راځي.

## فعالیت

- زده کوونکي دې، پورتني مطالب په ګروپي شکل په سوال او ځواب سره تکرار کړي.

**۵. بیت الخلا ته د تللو آداب**: هغه څوک چې بیت الخلا یا قضای حاجت ته ځي، باید لاندې آداب مراعات کړي:

۱- باید د خلکو له سترګو پناه شي.

۲- باید داسې ځای غوره کړي چې د بولو (متیازو) څاڅکي ور وانه لوزي او ځان او لباس يې ککړ نه شي.

۳- بیت الخلاء ته له ننوتلو څخه د مخه باید «اَللّهُمَّ إِنِّي اَعُوذُ بِکَ مِنَ الْخُبُثِ وَ الْخَبَائِثِ» ووايي.

۴- د حشراتو په سوړو کې باید بولې ونه کړي.

۵- باید په لاره، هدیره، سیوري او د خلکو د ناستې په ځایونو کې قضای حاجت ونه شي.

۶- باید د قضای حاجت په وخت کې خبرې ونه شي.

۷- باید قضای حاجت د قبلې په لوري ونه شي.

۸- په ولاړو اوبو کې قضای حاجت ونه کړي.

۹- استنجاء (اودس وچول) باید په کین لاس وشي.

## فعالیت

- هر زده کوونکی دې، د یوه ادب دحکمت یاګتې په هکله خپل نظر ووايي.

## ارزونه

لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

۱. طهارت تعریف کړئ.

۲. د طهارت د مشروعیت دلیل ووایئ.

۳. طهارت په څو ډوله دی؟

۴. د بیت الخلا آداب بیان کړئ.

## کورنی دنده

د پورتنیو پوښتنو ځوابونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.





# استنجاء او نجاست

## ۱. د استنجاء تعريف

استنجاء: له خپل مخصوص ځای څخه د نجاست پاکول، استنجاء بلل کېږي.

## ۲. د استنجاء وسايل

اوبه، لوټه، تیږه، د تشناب کاغذ(او هر هغه شی چې د دې ځای نیولی شي)، د استنجاء له وسایلو څخه شمېرل کېږي.

استنجاء په هډوکي، خوشايي، طعام، سکاره، شيشه، د ليکلو کاغذ، ويښتان، پنبه، ټوټه او د څارويو په وښتو باندې مکروه ده.

## ۳. د استنجاء حکم:

۱. استنجاء په عادي حالاتو کې (هغه وخت چې نجاست له خپل ځای څخه تجاوز نه وي کړی) سنت مؤکد ده.

۲. خو که چېرې نجاست له خپل ځای څخه لږ تجاوز وکړي؛ استنجاء واجبه ده او که شا او خوا ځايونه ککړ شوي وي؛ نو بيا يې وينځل فرض دي.

## ۴. د نجاست معنا

نجاست په لغت کې: پلیتی او ناپاکی ته وایي.

او د فقهاوو په اصطلاح: هر هغه شی چې شريعت پليت بللی وي، نجاست ګڼل کېږي.

## ۵. د نجاست ډولونه

نجاست په دوه ډوله دی:

الف - حقيقي نجاست: هغه ګندګي ده چې لمونځ ورسره نه صحيح کېږي.

ب - حکمي نجاست: هغه دی چې د نجاست اثر او وجود څرګند نه وي، خو په حکمي او اعتباري ډول سره شريعت نجس ګڼلی وي.

## ۶. د حکمي نجاست ډولونه

حکمي نجاست په دوه ډوله دی:

۱- لويه بې اودسي: هغه حالت ته وايي چې په انسان باندې غسل واجب وي او لمونځ ورسره نه کېږي.

۲- کوچنۍ بې اودسي: هغه حالت ته وايي چې په انسان باندې يواځې اودس کول لازم وي.

### ۷- د حقیقي نجاست ډولونه:

۱- غلیظ نجاست: هغه نجاست دی چې په قطعي دلیل سره ثابت شوی وي، لکه: وینه، خنزیر، د انسان بولې اوغایطه مواد، د مردارشوي حیوان غوښه او شراب.

۲- سپک (خفیف) نجاست: هغه دی چې نجاست یې په غیر قطعي دلیل سره ثابت شوی وي، لکه: د هغو حیواناتو بولې چې غوښه یې خوړل کېږي.

### فعالیت

- زده کوونکې دې هغه شیان چې استنجاء کول پرې مکروه دي، ولیکي.

### ۸- د نجاست بښل شوې اندازه

- کله چې غلیظ یا جامد نجاست د یوې شرعي روپۍ له مقدار څخه لږه اندازه (۱۲۵، ۳ گرامه) جامو ته ورسېږي، لمونځ ورسره کېږي او که مایع وي له ورغوي څخه کمه اندازه (٦ سانتي) معاف ده.
- په خفیف (سپک) نجاست کې بښل شوی مقدار، په جامو کې له څلورمې برخې نه کم پاك نه لري او په بدن کې د غړي له څلورمې اندازې څخه کم معاف دی.
- خومسلمان باید تل کوښښ وکړي چې ځان او جامې یې پاکې وي، ځکه چې نظافت د ایمان جز دی. همدارنګه بې نظافتي انسان ته مختلفې صحي ستونزې پیدا کوي او په ټولنه کې خلك ورڅخه نفرت کوي.

### فعالیت

- زده کوونکي دې، پورتني مطالب په ډله ییزه توګه د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

### ارزونه

۱. لاندې اصطلاحات تعریف کړئ:

استنجاء، غلیظ نجاست، خفیف نجاست.

۲. لاندې شیانو ته مثال ووایاست:

غلیظ نجاست، خفیف نجاست.

### کورنۍ دنده

د ارزونې د برخې پوښتنې په خپلو کتابچو کې له ځوابونو سره یو ځای ولیکئ.

# اودس

## ۱- د اوداسه تعریف

د معینو اندامونو وینځلو او مسح کولو ته، اودس وايي.




- زده کوونکي دې د اودس د ګټو په هکله په ډله ییزه توګه بحث وکړئ.

## ۲- د اوداسه حکم

اودس کول د لمونځونو د اداکولو لپاره فرض دی.

## ۳- د اوداسه فرایض

د اوداسه فرایض څلور دي:

۱- د مخ وینځل: د سر له ویښتو نه د زنې تر لاندینۍ برخې پورې او د یو غوږ له نرمۍ څخه د بل غوږ تر نرمۍ پورې.

۲- د لاسونو پرېمینځل له څنګلو سره.

۳- د سر دڅلورمې برخې مسحه کول.

٤- د پښو مینځل له ښنګرو سره.

## ۴- د اوداسه سنتونه:

۱- نیت کول.

۲- د اوداسه په پیل کې د "بسم الله الرحمن الرحیم" ویل.

۳- درې ځله د لاسونو مینځل تر مړوندونو پورې.

٤- درې ځلې د خولې پرېمینځل (مضمضه).

٥- درې ځلې د پوزې پرېمینځل(استنشاق).

٦- مسواک وهل.
٧- د ږيرې خلالول.
٨- د ګوتو خلالول.
٩- د مخ، لاسونو او پښو درې ځلې پرېمينځل.
١٠- په ټول سر باندې مسحه کول.
١١- د غوږونو شا او مخ په نويو اوبو مسحه کول.
١٢- (تـيَـمّن) لومړی د ښي غړو مينځل.
١٣- اوداسه کې ترتيب مراعتول.
١٤- پرله پسې د اندامونو مينځل.
١٥- د مينځلو په وخت کې د اندامونو مښل.

## ٥- د اوداسه آداب (مستحبات)

د اوداسه آداب په لاندې ډول دي:

١. د اوداسه په وخت کې نسبتاً په جګ ځای کېناستل چې جامې لمدې نشي.
٢ . د اوداسه په وخت له خلکو سره خبرې نه کول.
٣. په اوداسه کې له بل چا نه مرسته نه غوښتل(مګردا چې عذر ولري).
٤. که ګوتمه يې په ګوته کړې وي، د هغې خوځول چې ورلاندې ځای يې ښه پاک شي.
٥. په ښي لاس دخولې پرېمينځل او په چپ لاس د پوزې پرېمينځل.




- ستاسو له ټولګيوالو څخه دې، درې تنه په خپل وار سره داسې اودس وکړي چې فرضونه، سنتونه او آداب زده کوونکو ته پکې عملاً وښايي.

## ٦- د اوداسه مکروهات

د اوداسه د سنتو او يا د آدابو ترک کول.

## ۷- د اوداسه ماتوونکي

اودس په لاندې شیانو ماتېږي:

۱. له بدن نه د بولو، باد او غایطه موادو په خارجېدلو سره.

۲. له بدن نه د وینې او زوې خارجېدل.

۳. په ډکه خوله قی کول.

٤. بې هوشي.

۵. لېونتوب.

٦. نیشه کېدل (د نیشه یي موادو استعمال).

۷. په لمانځه کې په زوره (قهقهه) خندل.

۸. په اړخ او یا ډېره خوب کول (هغه خوب چې د اودس د ماتېدو امکان په کې وي).

### فعالیت

- د اوداسه د ماتوونکو په هکله دې، زده کوونکي یو له بل نه په ګروپي توګه پوښتنې وکړي.

### ارزونه

۱. د اوداسه فرایض بیان کړئ.

۲. د اوداسه سنتونه بیان کړئ.

۳. د اوداسه آداب په لنډ ډول بیان کړئ.

٤. د اوداسه مکروهات په لنډه توګه ووایاست.

۵. د اوداسه ماتوونکي بیان کړئ.

### کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې د پورتنیو سوالونو ځوابونه په خپلو کتابچو کې په ساده ژبه ولیکي.

# تيمم

## ۱- د تيمم تعريف

(تيمم) په لغت کې: قصد، عزم او ارادې ته وايي.
او په اصطلاح کې:په مخصوصه طريقه په پاکو خاورو باندې (د طهارت په نيت) د مخ او لاسونو مسحه کولو ته، تيمم وايي.

## ۲- د تيمم د روا کېدو عذرونه

په لاندې عذرونو سره تيمم روا کېږي:

الف - د اوبو نشتوالی يا کم والی: کله چې اوبه نه وي او يا دومره کمې وي که په هغې اودس وشي، نو د څکلو او پخلي لپاره بيا کفايت نه کوي، نو په داسې حالت کې تيمم روا دی.

ب - د اوبو لرې والی: د يوه ميل په اندازه لرې والی، څکه چې په يو ميل تګ کې تکليف دی، خو که د ده هماغه لاره وي؛ نو بيا دې لمونځ لږ وروسته کړي او هلته دې اودس وکړي.

ج - مريضي: داسې مريضي چې اودس ورته زيان رسوي.

د - ډار او خوف: له دښمن او يا له وحشي حيواناتو څخه.

ه - بند:که څوک داسې ځای کې بندي وي چې د اوداسه اجازه ورته نه ورکول کېږي.

ط- د اوبو د اخيستلو توان نه درلودل: که اوبه يواځې په اخيستلو(پيرودلو) پيدا کېدلې؛ خو له انسان سره مالي توان موجود نه وي.

ر- د جنازې د لمانځه د اداکولو لپاره (د هغه چا لپاره چې نا څاپه راپيښ شي او جنازه تياره وي).

ز- د اوبو داستعمال توان ونه لري:لکه هغه څوک چې له څاه سره ولاړ وي؛ خو رسۍ نه وي چې اوبه ورباندې راوباسي.

## ۳- د تيمم کولو طريقه

په پاکو خاورو باندې دوه ځلې د لاسونو وهل چې لومړی ځل به وروسته له څنډ وهلو په مخ او دويم ځل به تر څنګلو پورې په لاسونو باندې راکاږي.

## ۴- د تيمم شرطونه:

الف - د تيمم لپاره نيت کول

ب - د تيمم لپاره له رواکوونکو عذرونو څخه، د يو عذر موجوديت

ج - تيمم بايد په پاکه خاوره باندې وشي.

د - په ټول مخ او لاسونو باندې تر څنګلو پورې د مسحې لاس راکښول.

ه - ټوله پنجه او يا د پنجې اکثره برخه، دوه ځلې په ځمکه وهل.

**۵- د تیمم ماتوونکي**:

الف - هر شی چې اودس او غسل ماتوي، هغه تیمم هم ماتوي.

ب - کله چې هغه عذرونه له منځه لاړ شي چې تیمم یې روا کړی و، لکه: د اوبو پیدا کېدل.

**۶- په موزو باندې مسحه کول**:

د مسحې کولو معنا:

(مسحه) په لغت کې: په یو شي باندې لاس راکښلو ته وایي.

او په اصطلاح کې: په خاصو موزو په خاصه توګه د لمدو لاسونو راښکل مسحه بلل کېږي.

**۷- په موزو باندې د مسحې د جواز شرطونه**:

الف - د موزو اغوستل په اوداسه سره.

ب - موزې باید د ګرځیدلو قابلیت ولري.

ج - ښنګري باید په موزو کې پټ وي.

د - موزې باید روغې وي او له درې ګوتو نه زیاتې څیرې نه وي.

**۸- په موزې باندې د مسحې موده**:

الف - د مقیم لپاره د مسحې کولو موده یوه شپه او ورځ ده.

ب - د مسافر لپاره د مسحې موده درې ورځې او درې شپې ده.

**۹- د موزې د مسحې ماتوونکي**:

الف - هر هغه شی چې اودس ماتوي؛ هغه د موزو مسحه هم ماتوي.

ب - جنابت، حیض او نفاس (بیا به پښې مینځي).

ج - د یوې او یا دواړو موزو ویستل.

د - د پښې اکثره برخه لمدیدل.

ر - د مسحې ټاکل شوې موده تېریدل.

ز - د درې ګوتو په اندازه د موزې شکېدل.

**فعالیت**

- یو زده کوونکی دې په عملي ډول تیمم او په موزو باندې مسحه وکړي.

### ۱۰- په پټیو باندې مسحه کول:

د پټۍ معنا: هر هغه شی چې پر مات او زخمي غړي د رغولو لپاره اېښودل کېږي؛ پټۍ ورته وايي.

### ۱۱- په پټۍ باندې د مسحې حکم:

په پټۍ باندې مسحه کول واجب دي.

### ۱۲- په پټۍ باندې د مسحې شرطونه

په پټۍ باندې د مسحې کولو لپاره علماوو لاندې شرطونه اېښي دي:

الف - کله چې د زخمي او يا ژوبل شوي ځای وينځل ناشونی وي.

ب - ژوبل شوي ځای ته به اوبه رسېدل او مينځل ضرر رسوي.

ج - له اړتيا نه په زياتې اندازې ځای باندې پټۍ نه لګول.

### ۱۳. د پټۍ د مسحې ماتوونکي

د پټۍ مسحه په دوو حالتونو کې ماتېږي:

الف- د پټۍ غورځېدل يا لرې کول.

ب - د اودس ماتېدل (بيا به هغه ځای مسح کوي).

## فعاليت

- زده کوونکي دې، پورتني مطالب په ګروپي شکل د سوال او ځواب په ميتود سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱- د تيمم لغوي او اصطلاحي معنا بيان کړئ.

۲- په موزو باندې مسحه کول تعريف کړئ او مسحه په لغت کې څه ته وايي؟

۳- د پټۍ مسحه کولو حکم څه دی؟

٤- د موزو د مسحې موده، د مقيم او مسافر لپاره څومره ده، بيان يې کړئ.

٥- د تيمم د رواوالي سببونه کوم دي؟ بيان يې کړئ.

٦- د تيمم د صحت شرطونه ذکر کړئ.

## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې د پورتنيو سوالونو ځوابونه په خپلو کتابچو کې په ساده ژبه وليکي.





# صلاة (لمونځ)

## ۱- د صلاة (لمانځه) تعریف:

(صلاة) په لغت کې: دعا ته ویل کېږي.

او په اصطلاح کې: له مخصوصو اقوالو او افعالو عبارت دی چې په تکبیر سره شروع کېږي او په سلام باندې ختمېږي.

## ۲- د لمانځه ځینې ځانګړتیاوې: [۱]

۱- لمونځ پاکي ده.

۲- لمونځ د انسان د دعا د قبلیدلو ښه وخت دی.

۳- لمونځ له خدای سره د انسان راز او نیاز دی.

٤- لمونځ له فحشاوو او منکراتو څخه انسان ژغوري.

٥- لمونځ تقوا ده.

٦- لمونځ له نورو مسلمانانو سره د وروړګلوۍ ښه رابطه ده.

۷- لمونځ د انسان په مخ کې نور او رڼا پیدا کوي.

۸- لمونځ انسان ته تسکین او اطمینان ورکوي.

۹- لمونځ د انسان صحت ساتي.

۱۰- لمونځ د انسان مشکلات آسانه کوي.

۱۱- لمونځ انسان د ښه فامیل خاوند کوي.

۱۲- لمونځ له خدای سره د انسان وعده ده چې ښه به کوي او بد به نه کوي.

۱۳- لمونځ تواضع ده.

(۱) د لمانځه ځانګړتیاوې اضافي معلومات دي او په امتحان کې شامل نه دي.

۱٤- لمونځ انسان ته وقار، درنښت او د خلکو احترام ورپه برخه کوي.
۱۵- لمونځ انسان د وخت ارزښت ته متوجه کوي.
۱٦- لمونځ د توبې او خدای ته د مراجعې ښه وخت دی.
۱۷- لمونځ د خدایﷻ د ذکر ښه طریقه ده.
۱۸- لمونځ د خدای مرسته انسان ته ورپه برخه کوي.
۱۹- لمونځ د مخلوق او خالق تر منځ د اړیکو یو ښکلی او په زړه پورې انځور جوړوي.

## ۳- د لمانځه د پرېښودو حکم:

الف - د لمانځه له فرضیت نه انکار کفر دی.
ب - د سستۍ او لټۍ له امله د لمونځ نه کول، فسق دی.

## ۴- د لمانځه وختونه

په احادیثو کې د لمانځه وختونه معلوم او ټاکل شوي چې تفصیل یې په لاندې ډول دی:

الف - د سهار د لمانځه وخت: د رښتیني سبا راختلو څخه پیل او په لمر ختلو سره پای ته رسېږي.

رېښتونی سبا: کله چې سپینوالی عرضاً د آسمان په کنارو کې خپور شي؛ رېښتونی سبا بلل کېږي.

ب - د ماسپښین وخت: پیل یې د لمر له زوال څخه او کله چې د هر شي سیوری د خپلې اندازې دوه برابره شي (پرته د زوال له سیوري څخه)، د ماسپښین وخت پای ته رسېږي.

ج - د مازیګر د لمانځه وخت: پیل یې د ماسپښین وخت له پای څخه او کله چې لمر ډوب شي، د مازدیګر وخت ختمېږي.

د - د ماښام د لمانځه وخت: کله چې لمر ډوب شي د ماښام وخت پيلېږي او چې شفق (هغه سره رڼا چې د ورځې په پای کې په افق کې ښکاري) ورک شي د ماښام وخت پای ته رسېږي.
ه - د ماسخوتن د لمانځه وخت: د ماسخوتن د لمانځه وخت د شفق له ډوبېدو څخه پيل او د سبا په ختلو باندې پای ته رسېږي.

## ۵- مکروه وختونه

په لاندې درو وختونو کې لمونځ کول منعه شوي دي:

الف - د لمر ختلو په وخت کې لمونځ کول روا نه دي .

ب - د زوال په وخت کې لمونځ کول روا نه دی.

ج - د لمر سترګه چې کله زېړه شي، د لمر تر ډوبيدو پورې، د همهغې ورځې د مازديګر د لمانځه نه پرته بل لمونځ روا نه دی.

**مسأله**

د سهار لمانځه نه وروسته تر لمر ختلو پورې او د مازديګر له لمانځه څخه تر لمر پريوتلو پورې، نفل لمونځ مکروه دی، خو قضايي لمونځونه، د تلاوت سجده او د جنازې لمونځ کول (چې په همدې وخت کې حاضره شي ) مکروه نه دي.

**۲- په لاندې وختونو کې د نفلونو کول مکروه دي:**

الف - د سبا ختلو نه وروسته د سهار له سنتو پرته نور نفلونه کول مکروه دي.

ب - د ماښام له لمانځه څخه مخکې د نفلونو کول مکروه دي.

ج - کله چې خطيب د جمعې يا اختر خطبه وايي، د نفلونو کول مکروه دي.

د - د اخترونو له لمونځ څخه وړاندې او وروسته نفل کول مکروه دي.

ه - کله چې د جماعت لمونځ ولاړ وي د نفلونو کول مکروه دي.

## فعالیت

• زده کوونکي دې، پورتني مطالب په ډله ییزه توگه د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱- لمونځ تعریف کړئ.
۲- د لمانځه لس ځانگړتیاوې بیان کړئ.
۳- د لمانځه وختونه کوم دي؟
٤- د لمانځه مکروه وختونه کوم دي؟ په مختصره توگه یې بیان کړئ.
٥- په کومو وختونو کې نفل کول مکروه دي؟

## کورنی دنده

پورتني سوالونه په خپلو کورونو کې حل او په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ.





# اذان او اقامت

### ۱- د اذان تعریف

(اذان) په لغت کې: اعلان ته وايي.

او د فقهاوو په اصطلاح کې: د لمانځه لپاره په مخصوصو الفاظو سره اعلان کول اذان بلل کېږي.

### ۲- د اذان حکم

اذان د پنځه وخته لمونځونو او د جمعې لمانځه لپاره مؤکد سنت دی او د نورو لمونځونو، لکه: د اخترونو، سنتو، نفلونو، استسقاء، خسوف او کسوف لپاره جواز نه لري.

### ۳- په اذان او اقامت کې باید لاندې شیان په نظر کې ونیول شي

الف - باید اذان او اقامت د وخت له داخلیدلو نه وروسته وي.

ب - اذان او اقامت باید په عربي ژبه وشي.

ج - د اذان او اقامت الفاظ او کلمات باید پرله پسې او په ترتیب سره وویل شي.

د - اذان باید په لوړ آواز سره وشي، تر څو یې نور خلك واوري.

ه - مؤذن باید مسلمان او عاقل وي.

## ۴- د اذان الفاظ:

اَللهُ اَکبَرُ اَللهُ اَکبَرُ

اَللهُ اَکبَرُ اَللهُ اَکبَرُ

أَشهَدُ أَن لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ أَشهَدُ أَن لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ

أَشهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً رَّسُولُ اللهِ أَشهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً رَّسُولُ اللهِ

حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ

حَيَّ عَلَى الفَلَاحِ حَيَّ عَلَى الفَلَاحِ

اَللهُ اَکبَرُ اَللهُ اَکبَرُ

لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ

**یادونه**

- د سهار د لمانځه لپاره د «حَيَّ عَلَى الفَلَاحِ» تر جملې وروسته د «الصَّلَاةُ خَيرٌ مِنَ النَّوم» عبارت دوه ځله ویل کېږي.
- د اقامت په وخت کې همدغه کلمات ویل کېږي؛ یوازې د «حَيَّ عَلَى الفَلَاحِ» له کلمې نه وروسته دوه ځلې «قَد قَامَتِ الصَّلَاةُ» ویل کېږي.




- یو زده کوونکی دې په ټولګې کې اذان او بل زده کوونکی دې اقامت په داسې آواز سره ووایي چې د نورو ټولګیو مزاحمت پرې ونه شي، بیا دې ښوونکی او نور زده کوونکي خپلې ملاحظې ووایي.

## ۵- د اذان او اقامت سنتونه

په اذان کې اووه شیان سنت دي:

الف - مؤذن باید صالح، امین او د لمانځه وختونه وپېژني.

ب - مؤذن ته ښایي د اذان کولو پر مهال اودس لرونکی وي.

ج - مؤذن به اذان په ولاړه وایي.

د - د اذان په وخت کې به د مؤذن مخ قبلې لور ته وي او د «حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ» ویلو په وخت کې به ښي خوا ته او د «حَيَّ عَلَى الفَلَاحِ» ویلو په وخت کې به کیڼ لوري ته مخ اړوي.

ه - د اذان په وخت کې مؤذن باید خپلې ګوتې په غوږونو کې کېږدي.

ط - مؤذن باید د ښه آواز لرونکی وي.

ر- مؤذن باید د اذان او اقامت ترمنځ فاصله راولي، یعنې له اذان څخه به څه وخت وروسته اقامت کوي.

## ۶- د اذان مکروهات

الف - په اذان کې تلحین (د اذان کلمې یا حرکات بدلول، کمول یا زیاتول) مکروه دي.

ب - د جنابت په حال کې د اذان او اقامت کول مکروه تحریمي دی.

ج - د فاسق اذان مکروه دی.

د - د غیر عاقل ماشوم له پاره اذان مکروه دي.

ه - د ښځې اذان مکروه دی.

ر - د اذان په وخت کې خبرې کول مکروه دي.

ز - له اذان نه وروسته د مؤذن وتل له جومات نه مکروه دي.

## ۷- د اقامت حکم

اقامت د ټولو وختي، فرضي او فوتي لمونځونو لپاره سنت دی. د اقامت الفاظ کټ مټ د اذان الفاظ دي مګر د (حيّ علی الفلاح) له ويلو څخه به وروسته (قد قامت الصلاة) زياتوي او همدا راز د اذان احکام د اقامت لپاره هم دي.




- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ګروپي شکل د سوال او ځواب په ميتود سره تکرار کړي.




الف ـ اذان او اقامت تعريف کړئ.

ب ـ د اذان او اقامت حکم بيان کړئ او شرطونه يې کوم دي؟

ج ـ د اذان او اقامت سنتونه څو دي؟ بيان يې کړئ.

د ـ د اذان مکروهات کوم دي؟ په لنډه توګه يې بيان کړئ.




د پورتنيو پوښتنو ځوابونه په خپلو کتابچو کې وليکئ.



# د لمانځه شرطونه

**۱ - د لمانځه شرطونه په لاندې ډول دي:**

الف ـ له حقيقي او حکمي نجاست څخه د ځان پاکوالی.

ب ـ له نجاست څخه د جامو پاکوالی.

ج ـ په پاکو جامو باندې د عورت پټول.

د ـ قبلې ته مخ کول.

ه ـ د وخت داخلېدل.

و ـ لمانځه ته د داخلېدو نيت کول، په داسې ډول چې له تحريمې تکبير سره هېڅ فاصله ونه لري.

ز ـ د لمانځه د ځای پاکوالی.

**مسأله**

**د هغه عورت اندازه چې پټول يې د لمانځه لپاره ضروري دي عبارت دي له:**

**الف**: **د سړي عورت**: د نامه له غوټې څخه تر زنګنونو پورې، خو د زنګنونو سترګه عورت ده او د نامه غوټې عورت نه ده.

**ب**: **د ښځې عورت**: په لمانځه کې د ښځې ټول بدن عورت دی، مګر يوازې مخ، پنجه او قدمونه يې عورت نه دي، يعنې د لمانځه په وخت کې به ټول بدن پټوي پرته له ذکر شويو ځايونو څخه.

**مسأله**

که چېرې څوک د قبلې په لوري شکمن شي او نه پوهېږي چې کومې خواته ده، نه څوک داسې پيدا کړي چې پوښتنه ورنه وکړي، فکر دې وکړي، وروسته له دې چې په هر لوري يې غالب ګومان کې راغی هغه لوري ته دې لمونځ وکړي، همدا لوری د ده لپاره قبله ده.

### ۲- د لمانځه ارکان او فرضونه

الف ـ د تکبیر تحریمه ویل.

ب ـ په لمانځه کې دریدل.

ج ـ د قرائت لوستل که یو آیت هم وي.

د ـ رکوع کول.

ه ـ سجده کول.

ط ـ د تشهد په اندازه وروستۍ قعده.

### ۳- د لمانځه د فرضونو حکم

د فرایضو اداکول په لمانځه کې حتمي او ضروري دي، که چېرې یې څوك قصداً یا سهواً پرېږدي لمونځ یې نه صحیح کېږي او بېرته به خپل لمونځ راګرځوي، همدا راز د فرضو پرېښودل د سهوې د سجدې په کولو نه جبیره کېږي.

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییزه توګه د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱. د لمانځه شرطونه څو دي؟ بیان یې کړئ.

۲. د لمانځه ارکان څو دي؟ بیان یې کړئ.

۳. که څوك یو فرض له فرائضو څخه په لمانځه کې پرېږدي، نو حکم یې څه دی؟

## کورنۍ دنده

پورتنیو پوښتنو ته په خپلو کتابچو کې په ساده ژبه ځوابونه ولیکئ.





# د لمانځه واجبات او سنتونه

**۱- د لمانځه واجبات**:

۱. د فاتحې یعنې (الحمد لله) لوستل،

۲. په ډکو رکعتونو کې د فاتحې له سورت سره، د یو بل سورت او یا درو آیتونو یو ځای کول،

۳. په جهري لمونځونو کې (د امام لپاره) په جهر سره قرائت او په خفیه لمونځونو کې په خفیه قرائت،

٤. د (الحمد لله) لوستل د سورت له لوستلو څخه مخکې،

۵. د هر رکن اداء کول په آرام او اطمینان سره،

٦. له دوو رکعتونو نه وروسته کېناستل (لومړۍ قعده)،

۷. په اوله او دویمه قعده کې د تشهد لوستل،

۸. په ارکانو کې د ترتیب مراعاتول،

۹. په وتر لمانځه کې د قنوت دعاء لوستل،

۱۰. د دوو لومړیو رکعتونو تعینول د قرائت لپاره (په څلور رکعتي اودرې رکعتي فرضي لمونځونو کې)،

۱۱. د اختر په لمانځه کې د زوایدو (اضافي) تکبیرونو ویل.

**۲. د واجباتو د پرېښودلو حکم**

که په لمانځه کې یو واجب قصداً پرېښودل شي، لمونځ به بېرته راګرځوي او که سهواً ترک شي، سجده سهوه لازمېږي.

## د لمانځه سنتونه

په لمانځه کې لاندې شیان سنت دي:

۱- د نارینه لپاره په تکبیر تحریمه کې د غوږونو تر برابرۍ او د ښځو له پاره د اوږو تر برابرۍ، د لاسونو پورته کول،

۲- له تکبیر تحریمه څخه وروسته د ثناء ویل،

۳- په لومړي رکعت کې د «اعوذ بالله من الشیطان الرجیم» ویل،

۴- د (بسم الله الرحمن الرحیم) ویل،

۵- له فاتحې نه وروسته د (آمین) ویل،

۶- له رکوع نه وروسته د (سمع الله لمن حمده) ویل،

۷- له (سمع الله لمن حمده) څخه وروسته د (ربنا ولك الحمد) ویل،

۸- هر رکن ته د انتقالیدو لپاره د تکبیر (الله اکبر) ویل،

۹- په رکوع کې د (سبحان ربي العظیم) او په سجده کې د (سبحان ربی الأعلی) ویل،

۱۰- په رکوع کې د زنگنونو د سترګو په سر، د لاسونو ایښودل چې ګوتې یې پراخه نیولې وي، یعنې په عادي حالت د لاسونو ایښودل،

۱۱- د ښۍ پښې ودرول او د چپې پښې غوړول په دواړو قعدو او د دواړو سجدو په منځ ناسته (جلسه) کې ورباندې کېناستل،

۱۲- د (أشهد أن لّا إله) په وخت کې د شهادت ګوته پورته کول او د (الا الله) په ویلو سره ښکته کول،

۱۳- د کېناستلو په وخت کې لاسونه په زنګنونو باندې ایښودل،

۱۴- د فرضو په دوو وروستیو رکعتونو کې د (الحمدلله...) لوستل سنت دي.

۱۵- د امام له لوري د انتقالیدو تکبیرونه، (سمع الله لمن حمده) او سلام لفظ په لوړ آواز سره ویل سنت دي.

۱٦- په وروستی ناسته (قعده) کې درود ویل،
۱۷- له درود نه وروسته د ماثورې (قرآني او مسنونه) دعاء لوستل، لکه: (ربنا آتنا فی الدنیا حسنة و فی الاخرة حسنة وقنا عذاب النار)،
۱۸- د سلام گرځولو په وخت کې ښي او کیڼ لور ته د مخ گرځول،
۱۹- کله چې امام سلام اړوي، باید مقتدیان په نیت کې ونیسي چې زما سلام په دوی، ساتونکو (حفظه) ملایکو او د جنیاتو په صالحو بندگانو باندې دی.
۲۰- کله چې مقتدي سلام گرځوي؛ په نیت کې به هغه خلک نیسي چې کوم د سلام لور ته وي.
۲۱- مقتدي به د سلام گرځولو په وخت کې، په امام باندې چې کوم لور ته واقع وي هم د سلام اچولو نیت کوي او که په امام پسې ولاړ وي په دواړو سلامونو کې به په امام د سلام اچولو نیت کوي.
۲۲- که چېرې یو څوک یوازې لمونځ کوي؛ د سلام اچولو په وخت به په ساتونکو (حفظه) ملایکو د سلام اچولو نیت کوي.

## فعالیت

- یو زده کوونکی دې د لمانځه واجبات د نورو زده کوونکو په وړاندې بیان کړي.

## ارزونه

- الف: لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

۱- د لمانځه له واجباتو څخه د یو واجب پاتې کېدل څه حکم لري؟
۲- د لمانځه سنتونه څو دي؟ پنځه یې بیان کړئ.
۳- د لمانځه واجبات بیان کړئ.

• ب: د لاندې صحيحو جملو مخې ته (ص) او د غلطو مخې ته د (غ) توري ولیکئ:

۱- په وترو کې د قنوت دعاء لوستل فرض ده (    ).

۲- د آمین، أعوذ بالله، بسم الله او سمع الله لمن حمده ویل د لمانځه سنتونه دي. (    )



## کورنی دنده

هر زده کوونکی دې د پورتنیو سوالونو ځوابونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.





# د لمانځه د ادا کولو طریقه

## ۱. د لمانځه د ادا کولو طریقه په لاندې ډول ده:

۱- لمونځ کوونکی باید د لمانځه د پیل پر مهال، لاسونه د غوږونو له لاندنیو نرمیو سره برابر کړي او هم مهاله دې (الله اکبر) ووایي.

۲- بیا دې خپل ښی لاس په چپ لاس له نامه لاندې کېږدي، بیا دې ثناء **(سُبْحَانَكَ اللَّهُمْ وَ بِحَمْدِكَ وَ تَبَارَكَ اسْمُكَ وَ تَعَالَى جَدّكَ وَلاَ إِلَهَ غَيْرُكَ)** ووایي.

۳- د ثناء ویلو نه وروسته دې (أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ) ووایي.

(د ثناء، أعوذ بالله او بسم الله ویل په پټ آواز سره دي او مقتدي به اعوذ بالله او بسم الله نه وایي که چیرې لمونځ په جماعت سره و).

۴- (الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٢﴾ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿٣﴾ مَالِكِ يَوْمِ الدِّينِ ﴿٤﴾ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ﴿٥﴾ اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ ﴿٦﴾ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ ﴿٧﴾) دې ووایي.

۵- بیا دې په پټه سره (آمین) ووایي.

۶- وروسته دې د قرآن کریم یو سورت او یا درې آیتونه تلاوت کړي.

۷- د سورت تلاوت کولو نه وروسته دې، په تکبیر (الله اکبر) ویلو سره رکوع ته ټیټ شي.

۸- په رکوع کې به په پنډیو باندې، په ولاړ حالت کې لاسونه د زنګنونو په سترګو په داسې حال کې کېږدي چې ګوتو یې ګونډې محکمې نیولې، شا یې غوړولې او سر به یې نه ښکته وي نه پورته، رکوع به وکړي.

۹- په رکوع کې دې درې ځله تسبیح (سبحان ربي العظیم) ووایي.

۱۰- کله چې له رکوع څخه سر را اوچت کړي، نو لومړی دې (سمع الله لمن حمده) ووایي، او بیا دې (ربنا ولک الحمد) ووایي.

**مسأله**

د جماعت په لمانځه کې به امام (سمع الله لمن حمده) ووايي او مقتدي يوازې (ربنا ولك الحمد) وايي.

۱۱- د (ربنا ولك الحمد) له ويلو نه وروسته، لمونځ کوونکی لږه شېبه په مطمئن ډول نېغ درېږي، بيا سجدې ته د ټيټېدو پرمهال د تکبير (الله اکبر) په ويلو سره ټيټېږي، لومړی به زنګنونه، بيا لاسونه په داسې حال کې چې ګوتې يې مخامخ قبلې ته وي، بيا پوزه او وربسې تندی په ځمکه کېږدي او په هره سجده کې به درې ځله (سبحان ربي الاعلی) ووايي. د سجدې پر مهال بايد څنګلې له زنګنونو او ورنونه له ګېډې نه لرې کړي او د پښو د ګوتو سرونه به د قبلې لور ته کوي، داسې چې له ځمکې څخه به پورته نه وي.

۱۲- بيا دې په تکبير ويلو سره سم، له سجدې څخه سر راپورته کړي او په مطمئن ډول سره دې لاسونه د زنګنونو سترګو سره برابر کېږدي، په داسې حال کې چې ښۍ پښه يې ولاړه او کيڼه پښه يې څملولې وي، کېني.

۱۳- د لږې شېبې دمې نه وروسته دې دويمې سجدې ته لاړ شي او درې ځله دې تسبيح (سبحان ربي الاعلی) ووايي.

۱٤- له دويمې سجدې نه وروسته دې په تکبير (الله اکبر) ويلو سره په داسې حال ودرېږي چې لومړی خپل سر، بيا لاسونه وربسې زنګنونه را اوچت کړي. لمونځ کونکی دې لاسونه په ځمکه نه لګوي او په مستقيم ډول دې دوهم رکعت ته پورته شي.

۱٥- دويم رکعت دې هم د لومړي رکعت په څېر اداء کړي، (لاسونه دې غوږونو ته نه پورته کوي، ثناء او أعوذ بالله به هم نه وايي، نور پاتې رکعتونه يوازې په بسم الله الرحمن الرحيم سره پيلېږي).

۱٦- کله چې لمونځ کونکی د دويم رکعت له سجدې څخه خلاص شي؛ نو بيا دې د لاسونو ګوتې خپرې د زنګنونو له سترګو سره برابرې کېږدي، داسې چې ښۍ

لاس یې په ښي زنګون او کیڼ لاس یې په کیڼ زنګون کېښودل شوی وي، له بلې خوا ښی پښه ولاړه او کیڼه پښه یې څملولې وي او پرې ناست وي او بیا دې (**التَّحِیَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّیِّبَاتُ، السَّلَامُ عَلَیْكَ أَیُّهَا النَّبِیُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ، السَّلَامُ عَلَیْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِینَ، أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَد أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ**) ووایې.

۱۷- که چېرې لمونځ دوه رکعته وي بیا دې درود شریف (**اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ، وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ، اللَّهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ، وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ، كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ، وَعَلَى آلِ إِبْرَاهِيمَ، إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ**) او د ماثورې دعا (**اللَّهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ**) تر ویلو وروسته، سلام وګرځوي.

۱۸- که چېرې لمونځ درې رکعتیزه وي؛ بیا د دریم رکعت له دویمې سجدې وروسته تشهد، درود او دعا ووایي او سلام دې وګرځوي.

۱۹- که څلور رکعتیز وي؛ بیا دې د څلورم رکعت له دویمې سجدې وروسته همدا پورتنی عمل ترسره کړي.

## ۲. د سړي او ښځې د لمانځه ترمنځ توپیرونه

د ښځې لمونځ د سړي له لمانځه نه په لاندنیو شیانو کې توپیر لري:

۱ـ ښځه به د تکبیر تحریمه په وخت کې لاسونه تر اوږو پورته کوي او سړی د غوږو تر نرمیو پورې.

۲ـ ښځه د قیام پر مهال لاسونه پر سینه او سړي یې تر نامه لاندې ږدي.

۳- په سجده کې به ښځه څنګلې له زنګنونو سره نښلوي، نارینه به یې جلا کوي.

٤- په سجده کې به ښځه خېټه له ورنونو سره نښلوي او سړی یې جلا کوي.

٥- د لمانځه په ټولو ناستو کې ښځه دواړه پښې ښي طرف ته باسي او پر ځمکه کېني.

٦- ښځه به د سجدې په وخت کې ځنګلې له ځمکې سره لګوي.

## فعاليت

- يو زده کوونکی دې، عملاً دوه رکعتيز لمونځ د خپلو ملګرو په وړاندې ادا کړي.
ښوونکی او نور زده کوونکي دې خپلې ملاحظې په آخر کې وړاندې کړي.

## ارزونه

١. د ثنا دعا کومه ده او له دې څخه وروسته به لمونځ کوونکی څه وايي؟
٢. د ( ولا الضآلين) نه وروسته کومه کلمه پټه تکرارېږي؟
٣. (سمع الله لمن حمده) او (ربنا ولك الحمد) په کوم ځای کې ويل کېږي؟
٤. د ښځې او سړي د لمانځه تر منځ مهم توپيرونه ووایاست.

## کورنۍ دنده

د لمانځه د اداکولو طريقه، په لنډه توګه خپلو کتابچو کې وليکئ.





# وتر او سنت لمونځونه

### ۱. د وترو د لمانځه حکم

د وترو لمونځ د امام ابوحنیفه (رحمة الله علیه) په نظر واجب دی، لکه څرنگه چې د اختروتو لمونځونه دي او د یارانو په نظر مؤکد سنت دی.

### ۲. د وترو د لمانځه مقدار

د وترو لمونځ درې رکعته دی.

### ۳. د وترو د لمانځه وخت

د وترو لمونځ د ماسخوتن له لمانځه څخه وروسته ادا کېږي.

### ۴. د وترو لمونځ کې قرائت

د وترو په ټولو رکعتونو کې د قرائت لوستل لازم دي.

### ۵. د قنوت ویل

له رکوع څخه مخکې د وترو په دریم رکعت کې د قنوت دعا ویل کېږي:

### د قنوت دعا

**اللَّهُمَّ إِنَّا نَسْتَعِينُكَ وَنَسْتَغْفِرُكَ وَنُؤْمِنُ بِكَ وَنَتَوَكَّلُ عَلَيكَ وَنُثْنِي عَلَيكَ الْخَيرَ. ونَشْكُرُكَ وَلا نَكْفُرُكَ وَنَخْلَعُ وَنَتْرُكُ مَن يفْجرُكَ.اللَّهُمَّ إياكَ نَعْبُدُ وَلَكَ نُصَلِّي وَنَسْجُدُ وَإِلَيكَ نَسْعَى وَنَحْفِدُ ونَرْجُو رَحْمَتَكَ وَنَخْشَى عَذَابَكَ إِنَّ عَذَابَكَ بِالْكُفَّارِ مُلْحِقٌ.**

### ۶. د سنت ډولونه

سنت په دوه ډوله دي، یو ته یې مؤکد او بل ته یې غیر مؤکد سنت یعنې مندوب وایي.

### الف ـ مؤکد سنت

هغه دي چې رسول الله ﷺ پرې همیشه والی کړی، خو کله کله یې د دې لپاره پرېښي چې د فرضو گومان پرې ونه شي.

### ب ـ غیر مؤکد سنت (مندوب)

هغه سنت دي چې رسول الله ﷺ کله کړي او کله یې پرېښي وي.

### د مؤکدو سنتونو وختونه

د مؤکدو سنتونو د وختونو ترتیب په لاندې ډول دی:

۱-د سهار له فرضو څخه مخکې دوه رکعته او په کولو یې ډېر تاکید شوی دی.

۲- د ماسپښین له فرضو څخه مخکې څلور رکعته لمونځ په یو سلام سره (او یا هم د جمعې لمانځه څخه مخکې).

۳-د ماسپښین له فرضو څخه وروسته دوه رکعته.

٤- د ماښام له فرضو څخه وروسته دوه رکعته.

٥-د ماخوستن له فرضو څخه وروسته او له وترو څخه مخکې دوه رکعته.

٦- د جمعې له لمانځه څخه وروسته څلور رکعته په یو سلام اداء کول.

### ۹. د غیر مؤکدو سنتونو وختونه

د غیر مؤکد سنتونو وختونه په لاندې ډول دي:

۱- د ماسپښین له دوه رکعته سنتو سره نور دوه رکعته یو ځای کول.

۲- د مازدیگر له فرضو څخه مخکې څلور رکعته.

۳- د ماخوستن له فرضو څخه وروسته څلور رکعته، علاوه له هغو مؤکدو سنتو څخه.

٤- د ماښام له فرضو څخه وروسته شپږ رکعته.

### ارزونه

۱- د وترو د لمانځه حکم څه دی؟

۲- د وترو لمونځ څه وخت اداء کېږي؟

۳- د قنوت دعا وواياست.

٤- غیرمؤکد سنتونه کوم دي؟



### کورنی دنده

د مؤکدو او غیر مؤکدو سنتو وختونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.





# د تراويح لمونځ او قضايي لمونځونه

۱. **د تراويح د لمانځه حکم**: د تراويح لمونځ د ښځو او سړو لپاره د روژې په مياشت کې مؤکد سنت دی، ځکه چې نبي اکرم (صلی الله عليه وسلم) او راشدو خلفاوو پرې هميشه والی کړی. په جماعت سره اداء کول يې هم سنت دي.

**مسأله**: نفل په پيل باندې لازميږي، بناءً کله چې چا پرې پيل وکړ او بيا يې پريښود يعنې فاسد يې کړ وروسته به يې قضاء راوړي.

۲. **د تراويح د لمانځه وخت**: د تراويح لمونځ له ماخوستن لمانځه څخه وروسته او له وترو څخه وړاندې اداء کيږي.

۳. **د تراويحو د رکعتونو شمېر**: تراويح شل رکعته دي، دوه دوه رکعته په يو نيت او سلام اداء کيږي او بيا د هرو څلورو رکعتو وروسته يوڅه ناسته کيږي، يعنې په لسو سلامو شل رکعته تراويح پوره کيږي، بيا له دې څخه وروسته د وترو لمونځ هم په جماعت سره اداء کيږي. ياده دې وي چې د روژې له مياشتې څخه په پرته نورو مياشتو کې وتر په جماعت سره نه اداء کيږي.

۴. **د قضايي لمونځونه وختونه**: کله چې له چا څخه لمونځ قضاء شي، هر وخت چې فرصت ومومي بايد قضايي يې راوړي مگر په هغو درو وختونو کې دې نه کوي په کومو کې چې د لمانځه له کولو څخه منعه راغلې ده.

۵. **د قضايي لمونځونو د ادا کولو کيفيت**: په قضايي لمونځونو کې ترتيب واجب دی. کله چې له چا څخه له شپږو لمونځونو څخه لږ لمونځونه قضاء شوي وي، دا سړی د ترتيب خاوند دی، فقهاء کرام وايي: د ترتيب په خاوند د ترتيب مراعتول واجب دي، د ترتيب معنا دا ده چې قضايي لمونځونه به له حاضر لمونځ نه مخکې کوي او بيا به د قضايي ترمنځ هم ترتيب مراعتوي يعنې کوم لمونځ چې ترې مخکې قضاء شوی وي هغه به وړاندې کوي.

**۲. هغه شیان چې د ترتیب وجوب پرې ساقطیږي:**

۱- کله چې قضايي لمونځونه پرته له وترو څخه شپږو ته ورسیږي.

۲- کله چې له سرې څخه قضايي لمونځونه هېر شي.

۳- کله چې وخت تنګ وي او دواړه (وختي او قضايي لمونځونه) نه اداکېږي.

## فعالیت

زده کوونکي دې پورتني مطالب په ګروپي شکل د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱- لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

أ. د وترو او تراویحو لمونځونه څه حکم لري؟

ب. د وترو او تراویحو لمونځونه څنګه اداء کېږي؟

۲- لاندې صحیحو جملو ته د (ص) او غلطو ته د (غ) نښه کېږدئ:

أ. د تراویحو لمونځ د ماخوستن له وترو څخه وروسته اداء کېږي. (    )

ب. له چا څخه چې د پنځو لمونځونو څخه زیات لمونځونه قضاء شي، د ترتیب خاوند دی. (    )

ج. د ترتیب خاوند به وختي لمونځ په قضايي لمونځ باندې مخکې کوي. (    )

د. د وخت په تنګوالي سره ترتیب ساقطیږي. (    )

ه. شل رکعته تراویح په لسو سلامونو سره سرته رسیږي. (    )

## کورنۍ دنده

پورتنیو سوالونو ته په خپلو کتابچو کې ځوابونه وواياست.





# د لمانځه مفسدات او مکروهات

**۱. د لمانځه مفسدات**

(فساد) په لغت کې د صلاح ضد ته وایي او د فقهاوو په اصطلاح کې په عبادت کې ناسم وصف فساد بلل کېږي. په عباداتو کې د فساد معنا بطلان دی او په معاملاتو کې فساد بېله معنا او بطلان بیله معنا لري، هدف دا چې معاملات له فساد څخه وروسته صحیح کیدای هم شي خو عبادات داسې نه دي.

**۲. د لمانځه مفسدات:**

۱- خبرې کول،
۲- خوراک او څښاک کول که څه هم په هېره وي.
۳- داسې کار کول چې له لمانځه څخه بیرون کس پرې د لمونځ کوونکي گومان ونه کړي.
٤- له قبلې څخه د سینې گرځول،
٥- د لمانځه په منځ کې درې پرله پسې قدمونه اخیستل،
٦- لیونتوب او بې هوشي،
۷- د پوره یو رکن اداء کول په داسې ډول سره چې عورت یې څرگند او یا ورسره دومره نجاست وي چې لمونځ ورسره نه کېږي.
۸- داسې خندا چې خپله یې واوري.
۹- په خوله د سلام اچول یا ځوابول،
۱۰- د نیوي امورو لپاره ژړل، خو که چېرې د خدای له ویرې وي بیا یې لمونځ نه فاسدېږي.
۱۱- هغه الفاظ ویل چې له لمانځه څخه نه دي لکه: (انا لله و انا الیه راجعون) او یا (الحمد لله) ویل.
۱۲- په داسې شکل سره قرائت کول چې د کلمې معنا غلطوي.
۱۳- له امام نه پرته بل چاته فتحه ورکول.

**۳. د کراهیت معنا**

(کراهیت) په لغت کې د محبت ضد ته وایي او د فقهاوو په اصطلاح کې هر هغه شی چې پرېښودل یې له کولو څخه غوره وي، تنزیهي مکروه بلل کېږي او که چېرې منعه والی یې په ظني دلیل ثابت وي تحریمي مکروه بلل کېږي.
کله چې لمونځ له تحریمي کراهیت سره اداء شي؛ راگرځول یې واجب دي او که له تنزیهي کراهیت سره شوی وي، بېرته یې راگرځول مستحب دي.

### ۴. د لمانځه مکروهات

لاندې شیان په لمانځه کې مکروه دي:

۱ـ د سنتو او واجباتو پرېښودل، لکه: د امام متابعت چې په لمانځه کې پرېښودل شي.

۲ـ په لمانځه کې په نورو کارونو باندې د لاسونو مصروفول، لکه:

• د ګوتو قاتول راقاتول،
• له ګوتو څخه ټکونه ویستل،
• د لمانځه پر مهال ټنډه پاکول،
• د کاڼو او ګټو لرې کول، وېښتان ویستل،
• له خپلو جامو او لاسو سره لوبې کول،
• په اشاره باندې د سلام ځوابول.

۳ـ په لمانځه کې په نورو شیانو باندې د سترګو مصروفول، لکه:

• د آسمان لور ته کتل.
• د سترګو پټول.
• ښي او کيڼ لور ته کتل.

٤ـ مخصوص اذکار او دعاګانې نه لوستل، لکه: د رکوع په حالت کې چې د قرائت لوستل.

٥ـ په مسنونه طریقه د ارکانو نه ادا کول، لکه:

• غیرمنظم دریدل.
• نا سمه رکوع.
• نا سمه سجده لکه د پګړۍ په ول سجده کول.

٦ـ بې ضرورته ټوخی او اوسیلی کول.

## فعالیت

• زده کوونکي دې نور هغه کارونه چې د لمانځه د روحیې خلاف دي او بعضې اشخاص هغه کوي، په ګوته کړي.

## ارزونه

۱- لاندې پوښتنې ځواب کړئ:

ا - کراهیت او فساد څه معنا لري؟ په لنډ ډول يې تعریف کړئ.

ب- د لمانځه له مکروهاتو څخه پنځه وواياست.

ج- د لمانځه پنځه مفسدات بیان کړئ.

۲- لاندې صحیح جملوته (ص) او غلطو جملو ته (×) نښه کېږدئ:

أ- په لمانځه کې له ګوتو څخه ټکونه ویستل مکروه دي. (   )

ب- د رکوع په حالت کې د قرائت لوستل لمونځ فاسدوي. (   )

ج- په لمانځه کې خبرې کول مکروه دي. (   )

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د پورتنیو پوښتنو ځوابونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.





# د لمانځه متفرقه مسايل

۱ ـ په لمانځه کې بې اودسه کېدل

کله چې څوک پرته له ارادې، په لمانځه کې بې اودسه شي:

۱- لمونځ دې پرېږدي، اودس ته دې لاړ شي او پس له اوداسه دې خپل لمونځ له هغه ځای څخه پيل کړي چې په کوم ځای کې بې اودسه شوی دی. خو له سره راګرځول يې غوره دي.

۲- که چېرې بې اودسه شوی شخص امام وي، يو له خپلو مقتديانو څخه دې امام کړي او پاتې لمونځ به په خپل امامت مقتديانو ته پوره کوي.

۳- که چېرې يو لمونځ کونکي ته له وروستۍ ناستې څخه وروسته بې اودسي پېښه شي، له لمانځه څخه دې وګرځي، اودس دې وکړي او بيا دې سلام واړوي، پورتني درې واړه هغه صورتونه دي چې خبرې يې نه وي کړې، خو که خبرې يې کړې وي، بيا يې لمونځ فاسدېږي برابره ده قصداً، سهواً او يا خطأ يې له خولې وتلي وي.

٤- که چېرې کوم لمونځ کوونکی له بې اودسۍ څخه وروسته د اودس لپاره قدمونو اخيستلو او يا له قبلې څخه مخ ګرځولو ته اړ و او دا کار يې وکړ، لمونځ يې نه فاسدېږي که څه هم له درو قدمونو څخه زيات هم تللی وي.

۲- د سهوې سجده

الف ـ (سهوه) غفلت او بې پروايۍ ته وايي. د سهوې سجده هغو دوو سجدو ته ويل کېږي چې د لمانځه زيادت يا نيمګړتيا پوره کوي.

**ب ـ د سهوې د سجدې حکم**: د سهوې سجده واجب ده.

**ج ـ د سهوې د سجدې سببونه**: د سهوې سجده په لاندې شيانو واجبېږي:

- کله چې له واجباتو څخه يو يې له خپل ځای نه وړاندې يا وروسته، سهواً زيات او يا پرېښودل شي.
- کله چې لمونځ کوونکی فرض له خپل ځای څخه سهواً مخکې يا وروسته کړي.

• **مسأله**

د سنتو په پرېښودلو باندې د سهوې سجده نه لازمېږي، ځکه چې د سنتو په پرېښودلو باندې لمونځ نه نیمگړی کېږي.

• **مسأله**

د فرضو پرېښودل په سجده سهوه باندې نه جبیره کېږي، ځکه چې د فرضو پرېښودل لمونځ باطلوي، خو که چېرې څوک د لمانځه په کوم رکن کې سهوه شو بېرته به یې راگرځوي او که چېرې یې له خپل ځای څخه وروسته کړ، بیا به د سهوې سجده کوي.

### ۳- د سهوې د سجدې وخت

د سهوې د سجدې وخت د اخري قعدې له تشهد او یو سلام گرځولو څخه وروسته دی.

### ۴- د سهوې د سجدې طریقه

د وروستی قعدې له تشهد څخه وروسته یو سلام اړول کېږي او بیا له دې څخه وروسته دوه د سهوې سجدې کېږي، له دې څخه وروسته تشهد (التحیات...) د دویم ځل لپاره په همدې ناسته کې بیا به درود (اللهم صل...) او دعاء چې مخکې ندي ویل شوي، ولولي او بیا به ښي او کیڼ لور ته سلام واړوي.

### ۵- په لمانځه او یا اوداسه کې شک کول

۱- که چېرې یو چاته دا شک پیدا شو چې لمونځ یې کړی او که یې نه دی کړی، دې سړي لمونځ نه دی کړی، ځکه نه کول یې یقیني او په کولو کې یې شک دی.

۲- که چېرې یو چا ته له سلام گرځولو او یا د آخري قعدې له تشهد نه وروسته شک پیدا شو، دا شک هیڅ باوري نه دی او اعتبار ورته نشته.

۳-که چېرې څوک ډېر شکي وي او هر وخت ورته شک پیدا کېږي، دا به په غالب گمان عمل کوي.

٤- که چېرې څوک په دې باور وي چې اودس مې کړی دی، خو فکر کوي چې ممکن بې اودسه شوی وي، د دې سړي اودس شته، مگر که په یاد یې وي چې دی بې اودسه و، خو ممکن له عادت سره سم ده اودس کړی وي، نو دا بې اودسه دی.

### ۲- د تلاوت سجده:

الف ـ د تلاوت د سجدې حکم: د تلاوت سجده کول واجب دي.

### ب- د تلاوت د سجدې اسباب

د تلاوت سجده په لاندې درو سببونو باندې واجبېږي:

- تلاوت: د تلاوت سجده په تلاوت کوونکي باندې واجبېږي.
- اوریدل:د تلاوت سجده د سجدې د آیت په اوریدلو په اوریدونکي باندې هم واجبېږي.
- اقتداء: که امام د تلاوت د سجدې آیت ولوست په مقتدي باندې هم واجبېږي، که څه هم چې اوریدلی یې نه وي.

### ج- د تلاوت سجده ادا کول

تکبیر به وایي (خو لاسونه به غوږونو ته نه پورته کوي) او سجدې ته به ښکته کېږي، داسې سجده به کوي لکه څنګه چې د لمانځه سجده کوي او بیا به له سجدې څخه د پورته کېدو لپاره تکبیر وایي، دا دواړه تکبیرونه ویل واجب دي، د تلاوت سجده کې تشهد او سلام نشته.

په سجدې کې به (سُبْحَانَ رَبِی الَاعْلَی) درې ځلې وایي، د تلاوت د سجدې آیتونه په لاندې جدول کې روښانه شوي دي او همدارنګه په قرآن کریم کې هم دغه ځایونه په نښه شوي دي.

### د- د تلاوت د سجدو شمېر

| شمېره | سورت | آیت | شمېره | سورت | آیت |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | الاعراف | ۲۰۶ | ۸ | النمل | ۲۶ |
| ۲ | الرعد | ۱۵ | ۹ | الم السجدة | ۱۵ |
| ۳ | النحل | ۵۰ | ۱۰ | ص | ۲٤ |
| ٤ | الاسراء | ۱۰۹ | ۱۱ | حم السجدة | ۳۸ |
| ۵ | مریم | ۵۸ | ۱۲ | النجم | ٦۲ |
| ٦ | الحج | ۱۸ | ۱۳ | الانشقاق | ۲۱ |
| ۷ | الفرقان | ٦۰ | ۱٤ | العلق | ۱۹ |

## فعالیت

- یو زده کوونکی دې د خپلو ملګرو په وړاندې د تلاوت سجده عملاً اداء کړي او هم دې د وجوب اسباب څرګند کړي.

## ارزونه

الف ـ لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایئ:

١. د سهوې سجدې حکم څه دی؟ او سببونه یې په لنډ ډول یې بیان کړئ.

٢. د تلاوت د سجدې اسباب څو او کوم دي؟

٣. د تلاوت د سجدې د آیتونو شمېر څو دی؟

٤. که چېرې امام په لمانځه کې بې اودسه شي، څه باید وکړي؟

ب ـ لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

١. د سنتو په پرېښودلو باندې د سهوې سجده...........لازمېږي.

٢. د فرضو پرېښودل د سهوې په سجدې باندې.............کېږي.

٣. د تلاوت سجدې په دې سورتونو...................................کې دي.

## کورنۍ دنده

پورتني سوالونه سره له ځوابونو په خپلو کتابچو کې ولیکئ.





# د ناروغ او مسافر لمونځ

## د ناروغ لمونځ

د ناروغ لمونځ، ناروغی ته په کتلو په لاندې ډولونو دی:

۱- کله چې ناروغ ته ودرېدل ناشوني شول؛ بیا به لمونځ په ناسته، رکوع او سجدې سره کوي.

۲- که چېرې کوم ناروغ ته د رکوع او سجدې کول ناشوني شول؛ بیا به رکوع او سجده په داسې حال په اشاره کوي چې د سجدې اشاره به د رکوع له اشارې څخه ټیټه وي، خو د سجدې لپاره دې څه شی نه پورته کوي چې هلته ورباندې سجده وکړي.

۳- که چېرې څوک په ناسته هم قادر نه و، دا سړی به ستونی ستغ په داسې حال کې څملي چې پښې به یې د قبلې لور ته وي، د سر لاندې به یې د پورته کولو په خاطر، بالښت ایښی وي، مخ په قبلې به ملاست، رکوع او سجده به په اشاره باندې ترسره کوي.

٤- کله چې کوم ناروغ په دې قادر نه وي چې د سر په اشارې باندې لمونځ وکړي، له ده څخه لمونځ وروسته کېږي، د سترګو او وريځو په اشارې سره لمونځ کول ورته روا نه دي.

## ۲- د مسافر لمونځ

څرنګه چې سفر ستونزې لري، نو د دې لپاره ځانګړي احکام راغلي دي چې په لاندې ډول دي:

۱- د روژې په مبارکه میاشت کې مسافر ته روژه خوړل روا اما نیول یې غوره دي.

۲- مسافر ته د سفر په خاطر، په اغوستل شویو موزو باندی درې ورځې او شپې مسحه کول روا دي.

۳- په مسافر باندې د جمعې او اخترونو لمونځونه او قرباني نه شته.

٤- مسافر په سفر کې څلور رکعتي فرض لمونځونو کې قصر کوي.

۵ - د لمونځ وروسته کول هم ورته روا دي په هغه صورت کې چې له غلو او شوکمارو څخه وېره ولري.

## ۳- قصر

څلور رکعتیز فرض لمونځونه نیمايي کول او پر ځای یې دوه رکعته کول، قصر بلل کېږي، بناءً د سهار او ماښام لمانځه کې قصر نه کېږي.

۴- **د قصر حکم**: د لمانځه قصر په سفر کې لازم او په روژه کې (عزیمت) دی.
۵- **د قصر شرطونه**: فقهاوو کرامو د قصر لپاره لاندې شرطونه ایښي دي:
۱. د سفر اندازه او لیاره به په عادي تګ سره درې ورځې او شپې وي.[1]
۲. سفر د مسافر له خپل کلي یا قریې څخه د وتلو نه حسابیږي، یعنې کله چې مسافر له خپلې علاقې څخه بیرون شو، مسافر بلل کیږي.
۳. د سفر نیت به کوي.
٤. باید کوم سفر چې نیت یې لري، له دریو ورځو څخه کم نه وي.
٦. **د سفر په هکله مسلې**:
۱- یو سړی له خپل اصلي ټاټوبي څخه هغه چې پکې زیږیدلی او هستوګنه کوله؛ لاړ او بل ځای کې یې هستوګنه غوره کړه، د ځینو اړتیاوو له امله د څه وخت لپاره خپل ټاټوبي ته راغی، دا سړی به په خپل اصلي ټاټوبي کې قصر کوي، په دې شرط چې د دواړو تر منځ فاصله درې ورځې او یا له دې څخه زیاته وي.
۲- که له یو چا څخه په سفر کې لمونځونه قضاء شول او بیا کور ته راستون شو، د سفر د لمانځه قضایي به دوه رکعته راوړي او که چیرې په کور کې ترې قضاء شوي وي او قضاء یې په سفر کې راوړي هم هغه څلور رکعته به پوره کوي.

## ارزونه

۱- لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:
أ- د سفر ځانګړي احکام څو دي؟ په لنډ ډول یې بیان کړئ.
ب- قصر څه ته وایي او حکم یې څه دی؟
ج- قصر څو شرطونه لري؟ په لنډ ډول یې بیان کړئ.
۲- لاندې صحیحو جملوته (ص) او غلطو ته د (غ) نښه کیږدئ:
آ- د سفر اندازه په عادي تګ سره درې ورځې ده. (  )
ب- که له یو چاڅخه په سفر کې لمونځونه قضا شول، په کور کې به یې پوره اداءکوي. (  )
ج- په مسافر باندې د جمعې، اخترونو لمونځونه او قرباني نشته. (  )
د- کله چې ناروغ ته دربدل ناشوني شي بیا به لمونځ په ناسته کوي. (  )

## کورنۍ دنده

پورتنیو سوالونو ته په خپلو کتابچو کې ځوابونه ولیکئ.

(۱) ځینو معاصرو علماوو د شرعي سفر اندازه تقریباً (۸۹) کیلومتره تعیین کړې ده.





# د سیرت النبي ارزښت

الله تعالی فرمايي: «لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ» [الاحزاب سورت(۲۱)].

**ژباړه**: (په حقیقت کې ستاسو لپاره د الله په رسول کې یوه خورا غوره نمونه ده)

الله تعالی په دې مبارك آیت کې، موږ د پیغمبر ﷺ پیروی او اطاعت ته هڅولي یو، له دې امله لازمه ده چې د نبي کریم ﷺ سیرت زده کړو تر څو وکولای شو هغه پسې اقتداء او د هغه لاره تعقیب کړو، د سنتو او طریقو پلټنه یې وکړو او په لارښوونو یې عمل وکړو، نو د اسلام په پوهیدو او پیژندو کې د سیرت څه اهمیت دی؟ د سیرت مفهوم او ځانګړتیاوې کومې دي؟ د سیرت د تدریس موخې څه دي؟

## د سیرت تعریف

په لغت کې: د سنت، طریقې او تګلارې په معنا راغلی دی.

په اصطلاح کې: سیرت د یوه شخص د ژوند حالاتو، تاریخ او په هغه پورې اړوندو موضوعاتو ته ویل کېږي.

کله چې سیرت مطلق ذکر شي، نو د حضرت محمد ﷺ سیرت ور څخه مراد وي.

## فعالیت



- د سیرت علم له کوم علم سره زیات ورته والی لري؟ د حدیثو له علم سره، د تاریخ له علم سره او که له کوم بل علم سره؟

## هغه عمده موضوعات چې په سیرت کې څېړل کېږي عبارت دي له:

د پیغمبر ﷺ د میلاد له مهال څخه د نبوت مقدماتي نښې او نښانې، د حضرت محمد ﷺ وړوکتوب، رشد، ځواني، په مختلفو حالاتو کې د الله ﷻ ساتنه له خپل

پیغمبرنه، پیغمبر ﷺ باندې د وحې د نازلیدلو وخت، پټ او ښکاره دعوت، د قریشو له خوا د مسلمانانو ډول ډول ربړونې، د مسلمانانو هجرت حبشې ته، له مکې مکرمې څخه بهر د اسلام د مقدس دین خپریدل، د یثرب (مدینې منورې) له خلکو سره ترون، هلته هجرت، په مدینه منوره کې د اسلامي ټولنې جوړول، قبائلو او ګاونډیانو سره ترونونه، د مسلمانانو پر ضد د مشرکانو او یهودو توطیې او دسیسې، د هغوی په وړاندې د مسلمانانو دفاع او د پیغمبر اکرم ﷺ غزاګانې، ګاونډیو حاکمانو ته د دعوت د پیغامونو لیږل، د جزیرة العرب مختلفو سیمو ته د اسلام رسیدل، د پیغمبر ﷺ سفرونه، د هغه ﷺ ځلانده صفات او له نیمګړې دنیا څخه د هغه رحلت.

## د سیرت النبي ځانګړتیاوې

نبوي سیرت ډیرې ځانګړتیاوې لري چې ځینې یې دا دي:

۱ - د نبي کریم ﷺ سیرت د نورو انبیاوو د سیرت په پرتله تر ټولو صحیح ترین سیرت دی، ځکه چې دغه سیرت د متصلو روایاتو، پیژندل شوو او موثقو شخصیاتو له لارې نقل شوي او د ثبت او تدوین مرحلې ته رسیدلای دی.

د سیرت تدوین په (۱۰۱هجري) کال کې د عمر بن عبد العزیز د خلافت په دور کې پیل شو، نو ځکه د سیرت علماء په ډیرې آسانۍ سره کولای شي د پیغمبر اکرم (صلی الله علیه وسلم) صحیح سیرت له ناسمو اقوالو او ضعیفو کیسو څخه جلا کړي.

۲ – د سیرت لارښوونې هر اړخیزې او د ژوند ټولو حالاتو ته شاملې دي چې د هر چا لپاره په هر وخت او شیبه کې د ژوند غوره نمونه دي.

۳ – د پیغمبر ﷺ سیرت روښانه سیرت دی چې د هغه د ژوند د حالاتو پړاوونه په څرګند ډول بیانوي: د پیغمبر ﷺ د پلار عبد الله او مور بي بي آمنه بنت وهب د واده له وخت څخه پیل، د پیغمبر ﷺ پیدایښت، بعثت، د دعوت پړاوونه، غزاګانې او د پیغمبر ﷺ وفات په څرګند ډول بیانوي.




- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییزه توګه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

**د سیرت النبي د زده کړې ارزښت:**

۱ - د نبي کریم ﷺ سپیڅلی سیرت له فضایلو، نیکو اخلاقو، نصیحتونو او عبرتونو څخه ډک دی چې انسان د خیر په لور هڅوي.

۲- د پیغمبر ﷺ د سیرت زده کړه دا روښانه کوي چې د اسلام سپیڅلی دین د صبر، زغم، فکر، عقل، حکمت او بشریت ته د ښېګڼو او ګټو رسولو دین دی.

۳- د پیغمبر ﷺ سیرت مصلحینو او داعیانو ته د ټولنې د اصلاح بلنه او لارښوونه کوي.

٤- د پیغمبر ﷺ سیرت د اسلام د سپیڅلي دین لوړ مقام او بهتري د جاهلیت د زمانې د ناوړو دودونو، بې عدالتیو او ظالمانه رسمونو په پرتله، موږ ته را په ګوته کوي.

٥- د نبوي سیرت لوستل، د پیغمبر ﷺ او اصحابو کرامو له زیارونو او تکلیفونو (چې د اسلام د دین لپاره یې ګاللي) خبریدل، د انسان صبر، زغم او حوصله زیاتوي.

٦- د سیرت د زده کړې له برکته کولای شو د دین په ډېرو مقاصدو پوه شو، د قرآن کریم د زیاتو آیاتونو په تفسیر او شأن نزول خبر شو.

۷- نبوي سیرت د اسلامي امت د وحدت څرګندونه کوي او دا را په ګوته کوي چې اسلام څرنګه وکولای شو له مختلفو، یو بل ته له دښمنو او خپرو قومونو، ملتونو او قبائلو څخه یو واحد، قوي عزتمند او یو موټی ملت جوړ کړي، او ټول سره ورونه کړي، د دوی مشران چې له تقوی، اخلاص او الهي وېرې څخه برخمن وو، د خپلو کشرانو او اتباعو په زړونو کې یې تر ټولو ګران او عزتمند کړي دي.

۸- د سیرت لوستل او تدریس مسلمان ته، د اسلامي فرهنګ او پوهې د یوې مهمې برخې د غنامندۍ او بډاینې لامل ګرځي.

## ارزونه

۱ - نبوي سیرت په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.

۲- د نبوي سیرت درې ځانګړتیاوې څرګندې کړئ.

۳- د نبوي سیرت د زده کړې ارزښت، د مسلمانانو د ژوندانه په مختلفو اړخونو کې څرګند کړئ.



## کورنۍ دنده

د دې لوست د مطالبو خلاصه، د یوې لنډې مقالې په لړ کې په خپلو الفاظو ولیکئ.





# نبوي سيرت او تاريخ

## د تاريخ تعريف

تاريخ په لغت کې د يوې پيښې د وخت او زمان تعيين ته وايي.

په اصطلاح کې د تيرو وختونو د مهمو پيښو او واقعاتو د وخت او زمانې ټاکل دي، لکه: د مهمو شخصيتونو، ډلو، د هغوی د ژوند او مرګ له حالاتو، له تمدنونو، ښارونو، دودونو، رواجونو، عاداتو، کړنو، صنعتونو او انسابو څخه بحث کوي.

## سيرت د تاريخ اساس او بنسټ دی

د پيغمبر ﷺ سيرت د تاريخ اساس او بنسټ دی چې مسلمانان پرې وياړي، ځکه لومړنۍ تاريخي پيښې چې مسلمانانو ليکلې دي، هغه د سيرت پيښې وې، بيا د وروستنيو حوادثو تدوين تر نن ورځې پورې د هماغه سيرت لړۍ ده.

## د سيرت او تاريخ د سند د نقلولو طريقه:

د روايت په سلسله د تاريخي پيښو نقلول او صحيح روايتونه له غلطو روايتونو څخه جلا کول دا يوازې د عربو او مسلمانانو ځانګړتيا وه چې نور ورځنې بې برخې وو، ځکه چې مسلمانانو د سيرت ليکنه خپله ديني وجيبه ګڼله، دوی زيار باسه تر څو په رواياتو کې کوم شک او شبهه پاتې نشي او سيرت له هر ډول دروغو څخه پاک وي. دغه تګلاره لومړۍ د حديثو او سيرت په ليکنه کې رامنځته شوه، بيا د تاريخ په ليکنه کې ورڅخه کار واخيستل شو او تاريخ پورې اړوندو حقايقو د تمييز لپاره معيار وټاکل شو.



## فعاليت

- د سيرت او د تاريخ د علم ترمنځ تفاوت واضح کړئ.

## د نبوي سيرت مصادر

مونږ کولای شو د نبوي سيرت مصادر په لاندې ډول خلاصه کړو:

١ - قرآن کريم: د نبوي سيرت يوه پراخه برخه په قرانکريم کې په اجمالي توګه ذکر شوې ده.

٢ - نبوي سنت: دنبوي سيرت زياته برخه د احاديثو په کتابونو کې ذکر شوې ده، د احاديثو کتابونه عبارت دي له: کتب الصحاح، سنن، مسانيد، مستدرکات او معاجم او د سننو د کتابونو له قاموسونو څخه.

٣ - د محمدي صفاتو (شمايلو ) کتابونه:د محمدي شمايلو کتابونه هغه کتابونه دي چې مؤلفينو يې د نبي کريمﷺ اخلاقو، عاداتو، فضايلو اوسلوکو ته ځانګړې توجه کړې وي.

٤ - د نبوي دلايلو کتابونه (محمدي معجزې): په دغو کتابونو کې د پيغمبرﷺ معجزې او د نبوت دلائل ذکر شوي دي.

٥ - د محمدي خصائصو کتابونه: دغه کتابونه د پيغمبرﷺ او د هغه د امت د خصائصو او ځانګړتياوو په هکله بحث کوي.

٦ - د غزاګانو کتابونه:

دغه کتابونه د اسلام په اول کې د مسلمانانو د دښمنانو له سازشونو، دسيسو، د مسلمانانو له دفاع او د پيغمبرﷺ له غزواتو څخه بحث کوي.

٧_د سيرت ځانګړي کتابونه: دغه کتابونه د سيرت له علم پورې له اړوندو موضوعاتو څخه بحث کوي.

د سيرت د ليکنې پيل او د سيرت مشهور کتابونه

١- **د صحابه وو دوره**: د سيرت تدوين په ابتدايي بڼه له (٥٠-٦٠) هجري کلونو څخه پيل شو، چې حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنه به خپلو شاګردانو ته د پيغمبرﷺ د نسب او د هغه د غزاګانو په هکله معلومات ورکول او هغوی به ليکل، همداراز عبدالله بن عمرو بن العاص او براء بن عازب رضي الله عنهما به هم خپلو شاګردانو ته دسيرت د علم تدريس کاوه.

**۲- د تابعينو دوره**: د سيرت تاليف د تابعينو په زمانه کې پيل شو، عروه بن زبير بن عوام د رسول الله ﷺ د غزاګانو کتاب وليکه.
د پيغمبر ﷺ په سيرت او غزواتو کې تر ټولو مهم کتاب چې د تابعينو په زمانه کې وليکل شو، هغه د آبان بن عثمان (رحمه الله) کتاب و چې ليکل يې له (۸۳) هجري څخه دمخه بشپړ شو.
له هغه څخه وروسته په دويمه درجه کې د وهب بن منبه چې په (۱۱۰) هجري کې وفات شوی او د موسی بن عقبه چې په (۱٤۱) هجري کې وفات شوی، د سيرت کتابونه دي.
دغو کسانو د صحابه وو کرامو په زمانه کې ژوند کاوه او له هغوی څخه يې زده کړه کړې وه.
**۳- د اتباع تابعينو دوره**:په دغه دوره کې چې کوم کتابونه ليکل شوي دي، په لاندې ډول دي:
«السير والمغازي» د محمد بن اسحاق (المتوفى ۱٥۱هـ) ليکنه، «السيرة النبوية» د ابن هشام (المتوفى ۲۱۳ هـ) ليکنه، پورتني دواړو مؤلفانو له تابعينو څخه زده کړې کړې وې.
همدارنګه (الموطأ) د امام مالك (رحمه الله) (المتوفى ۱۷۹ هـ) ليکنه، دا د احاديثو کتاب دی، خو زياته برخه احاديث يې د پيغمبرﷺ په سيرت او اوصافو پورې اړه لري. (صحيح البخاري) د محمد بن اسماعيل البخاري (رحمه الله) (المتوفى۲٥٦ هـ) ليکنه، او (صحيح مسلم) د امام مسلم (رحمه الله) (المتوفى ۲٦۱هـ) ليکنه، په دغو کتابونو کې د احاديثو ډېره برخه، د پيغمبر ﷺ له نبوت څخه مخکې او وروسته، د ژوند حالات، د هغه خصائص، فضائل، غزوات او د يارانو مناقب او فضيلتونه بيانوي.
وروسته بيا نور کتابونه هم وليکل شول چې ځينې يې دا دي:
۱- عبد الملك بن هشام د محمد بن اسحاق کتاب (السير والمغازي) مختصر کړ، بيا د دغه (مختصر) لپاره، امام ابو القاسم عبد الرحمان اندلسي د (الروض الانف) په نوم شرحه وليکله.

۲- محمد بن سعد چې د واقدي شاګرد و، د( الطبقات الکبری) کتاب په اتو جلدونو کې ولیکه چې لومړی او دویم جلد یې یواځې د پیغمبرﷺ د سیرت او غزواتو د بحث لپاره ځانګړی شوی دی.

په اوسني عصر کې د سیرت په مختلفو اړخونو کې ډېر کتابونه تألیف او تدقیق شوي دي چې ځینې یې لاندې ذکرشوي دي:

- سیرة النبي: د امام ابن کثیر لیکنه.
- سیرة النبي: د علامه شبلي نعماني لیکنه.
- الرحیق المختوم: د مبارکپوري لیکنه.
- فقه السیرة: د محمد الغزالي لیکنه.
- نبي الرحمة: د محمد بن مسعد یاقوت لیکنه.
- تهذیب سیرة النبي ابن هشام د عبد السلام هارون لیکنه.[۱]

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییزه توګه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱. د نبوي سیرت تاثیر د تاریخ په تدوین کې بیان کړئ.

۲. د سیرت النبيﷺ تدوین په مستقله توګه څه وخت پیل شو؟ او د دوو کتابونو نومونه واخلئ چې په مستقیمه توګه د نبوي سیرت په هکله تالیف شوي وي.

## کورنی دنده

د لوست مهم مطالب په مختصر ډول په خپله ژبه د یوې مقالې په لړکې ولیکئ.

---

(۱) د (سیرت د لیکنې پیل او د سیرت د مشهورو کتابونو) بحث، اضافي معلومات دي، په امتحان کې شامل نه دي.



خلور وېشتم لوست

# له اسلام څخه وړاندې د جزيرة العرب حالت
# الف - (د بتانو د عبادت پيل)



د شپږمې پېړۍ په دويمې نمايي کې د جزيرة العرب حالت

- په عربي جزيره کې حاکم دين کوم و؟
- د بتانو عبادت څرنګه شروع شو؟
- بتان له کومه ځايه عربي جزيرې ته راوړل شول؟

## د دين تعريف

دين په لغت کې: د شريعت، قانون، مذهب، ملت، لارې، جزا او حساب په معنا راغلی دی.

په اصطلاح کې د انسانانو د ژوند هغه نظام دی چې اعتقادي، فکري، اخلاقي او عملي اړخونه يې په بر کې نيسي.

## له اسلام څخه دمخه د عربانو دين

له هغه وخته چې په مکه مکرمه کې د ابراهيمؑ څوځات (نسل) ميشت شول او بيا د عربي جزيرې په نورو سيموکې خپاره شول، عربان د ابراهيمي دين پيروان وو. د يو الله بنده ګي يې کوله، خو د يوې اوږدې مودې له تيريدو وروسته هغوی هغه څه چې يې زده کړي وو، هغه يې هير کړل او پرته له ځينو ديني شعائرو څخه نور هيڅ شی هم په هغوی کې پاتې نه وو.

## د بتانو د عبادت پيل

د لومړي ځل لپاره د نوحؑ په زمانه کې د بتانو عبادت پيل شو. د نوحؑ له قوم څخه پنځه تنه د (ود، سواع، يغوث، يعوق او نسر) په نامه نيک، ښه او عبادت کوونکي خلک وو، د هغوی مرګ د خلکو د وېرې، غم او خپګان لامل وګرځيد، يوه سړي ورته وويل: آيا د دوی خيرې ستاسو لپاره له لرګي څخه جوړې کړم چې د هغو په ليدو سره تاسو ته آرامي حاصله شي؟ دوی وويل: هو! که کولای شې دا کار وکړه.

نو خيرې يې د هغوی د ژوندانه د حالت په شان د خلکو لپاره جوړې کړې، د هرې کورنۍ چې به کومه خيره خوښيده، هماغه به يې وړه او په خپلو کورونو کې يې کيښوده، هغې ته به يې کتل او څه اندازه غمونه او انديښنې به يې کميدلې، وخت په همدې توګه تيريده، دويمه او دريمه پيړۍ يو په بل پسې تيرې شوې، خو ټولو خلکو به د هغو خيرو سره د لومړنۍ پيړۍ په شان کړنه کوله ترڅو څلورمه پيړۍ را ورسيده، خلکو وويل: که څېرې موږ د دغو نيکو او صالحو اشخاصو د خيرو عبادت وکړو، نو دا به اللهﷻ ته زموږ د نږديوالي لامل وګرځي او دوی به د اللهﷻ په وړاندې زموږ شفاعت وکړي، بناء د دغو مجسمو او شکلونو عبادت يې پيل کړ او راتلونکو نسلونو هم دې کار ته دوام ورکړ.

## د عربو پر ځمکه دبتانو د عبادت پیل

پیغمبر ﷺ د الله جل جلاله له لوري د اسې خلکو ته ولیږل شو چې هغوی د جاهلیت په تورو تیارو کې ژوند تیراوه او دغه تیاره د هغوی د ژوندانه په هره برخه حاکمه وه.
له دې څخه مخکې ټول عرب د ابراهیم علیه السلام د سپیڅلي دین پیروان وو.
یو کس چې عمرو بن لحی نومیده او د بني خزاعه د قبیلې مشر و، هغه یوه ورځ شام ته سفر وکړ، گوري چې د شام خلک د بتانو عبادت کوي، دا کار یې ډېر خوښ شو، له شام څخه یې یو بت چې (هبل) نومیده، له ځانه سره مکې ته راوړ او د کعبې شریفې په منځ کې یې کیښود. د مکې خلک یې د دغه بت بندگۍ ته راوبلل، د مکې خلکو د ده بلنه ومنله او د بتانو عبادت یې پیل کړ، لږه موده وروسته د ټول حجاز اوسیدونکو د مکې د خلکو لاره ونیوله.
د حجاز د خلکو د پخوانیو بتانو له جملې څخه (لات، منات او عزا) وو چې په مختلفو سیمو کې یې شتون درلود. له دې وروسته له الله جل جلاله سره شریک نیول او بت پرستي په ټول حجاز کې خپره شو، په هر کلي او بیا په هر کور کې د بتانو عبادت پیل شو، مسجد الحرام یې له بتانو څخه ډک کړ، په دې توگه بت پرستي د جاهلیت د دین یو مظهر وگرځیده.

## د بت پرستۍ مراسم

د بت پرستۍ مراسم دا رنگه وو:
خلکو به د بتانو عبادت کاوه، هغوی ته به یې پناه وړه، په ستونزو کې به یې بتانو ته فریاد او زارۍ کولې، خپل ضرورتونه او اړتیاوې به یې له بتانو غوښتلې، داسې عقیده یې درلوده چې بتان د الله جل جلاله په وړاندې زموږ سپارښتنه کوي، د هغو په شا او خوا به یې طوافونه کول، هغو ته به یې سجدې کولې او د بتانو لپاره او د هغو په نامه به یې قربانۍ کولې.
خپل هر شی (خیر او شر) به یې په غشو معلومول، د کاهنانو، منجمانو او غیب ویونکو په خبرو یې باور درلود، فال اچونه په هغو کې مروجه وه.

دا دین چې پر شرک، بت پرستۍ، وهمیاتو او خرافاتو ولاړ و، د ډیرو عربانو دین و.

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییزه توګه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱. دین په لغت او اصطلاح کې څه ته وايي؟ تعریف يې کړئ.
۲. د کعبې شریفې په چاپيریال کې خلکو څه وخت د بتانو عبادت پیل کړ؟
۳. مشرکان په بت پرستۍ کې د يو شمير مراسمو پابند وو، ځينې له هغو څخه شرحه کړئ.

## کورنۍ دنده

د لوست مطالب په مختصر ډول د يوې مقالې په ترڅ کې په خپله ژبه وليکئ.





# له اسلام څخه د مخه د عربو حالت
# (ديني، اخلاقي، ټولنيز، سياسي او اقتصادي حالت)

د اسلام د څلانده لمر له څرک وهلو نه وړاندې عربو څرنگه اخلاق درلودل؟ د هغوی ټولنيز او سياسي حالت څرنگه و؟

## ديني حالت

کله چې د اسلام سپيڅلی دين څرگند شو، عربانو چې د ابراهيم عليه السلام د دين د پيروۍ دعوا يې درلوده، د هغه د شريعت له اوامرو او نواهيو څخه ډېر لرې پاتې وو، د گڼ شمير بتانو عبادت يې کاوه او د ابراهيمي دين ټول اخلاقي مکارم يې پرېښې وو.
له همدې امله د وخت په تېرېدو سره په دوی کې ناوړو تقليدونو او دودونو وده وکړه، چې په پايله کې بت پرستي منځ ته راغله، دغو کارونو د دوی په ديني، ټولنيز او سياسي ژوند باندې د پام وړ اغيزې وکړې.

## اخلاقي او ټولنيزحالت

پرته له شکه د عربو د جاهليت په دور کې داسې ناوړو، ټيټو او ناکارو اخلاقو شتون درلود چې سليم عقل نشو منلی او بيداره وجدان نشو قبلولی، خو د دې ترڅنگ د دوی په منځ کې ځينې ستايل شوي اخلاق او غوره عادتونه هم وو چې د عربو مشرانو او شاعرانو به پرې وياړ کاوه، لکه: سخاوت، ځوانمردي، په وعدو وفا، ميړانه، عزت النفس او داسې نور.

عربي ټولنه په بېلا بېلو طبقو ویشل شوې وه چې د هرې طبقې ژوند به د بلې طبقې له ژوند سره توپیر درلود.
نارینه به د کورنۍ مشر او د پوره واک خاوند و، د سړي او ښځې اړیکه د واده د مراسمو په ترڅ کې د ښځې د اولیاوو د نظر لاندې سرته رسیده، خو په ځینو طبقاتو کې به د سړو او ښځو ترمنځ ډول، ډول ناروا اړیکو شتون درلود چې موږ هغې ته له بدکارۍ، فساد او بې پتۍ پرته بل تعبیر نه شو ورکولای. د جاهلیت په زمانه کې به د ډېرو ښځو لرل، د یوه کس لپاره په میراني، ویاړ او نیکۍ دلالت کاوه، د پلرونو ښځې (میرې) به یې له طلاقیدو یا د پلار له مړینې څخه وروسته، زامنو په نکاح کولې.
پلرونو به له خپلو اولادونو سره جلا، جلا چلند درلود، ځینو به ویل: زامن زموږ د ځیګر ټوټې دي چې د ځمکې په سر ګرځي او ځینو به خپلې لورګانې د ننګ، عار، فقر او لوږې له امله ژوندۍ خښولې، د زوی په زیږیدلو به خوشحاله کیدل، د لوڼو په زیږیدنه به خورا زیات خپه کیدل او د ډېر غم او قهر له کبله به یې د مخونو رنګونه توریدل، له خلکو څخه به پټیدل، ګواکې چې په کور کې ورته کوم لوی غم پیښ شوی دی. خرافات د دوی ترمنځ دومره اوج ته رسیدلي وو چې کله ناکله به یې خپل مقصد ته د رسیدو په موخه زامن نذر او قرباني کول اوخلکو به د ښارویو په څیر ژوند کاوه.
ښځې به یې د خرڅلاو لپاره بازار ته وړاندې کولې او کله به هم ورسره د کاڼو، لرګیو او نورو جماداتو په څیر معامله کیده.

## سیاسي حالت

د اسلام د ظهور په وخت کې د عربي جزیرې حاکمان په دوه ډوله وو:
۱ – تاجداره پاچاهان: چې دا ډول حاکمان په حقیقت کې له خپلواکۍ او بشپړې آزادۍ څخه برخمن وو.

۲ – د قبايلو او پرگنو مشران: ددغو مشرانو حاکميت او امتياز د تاجدارو پاچاهانو په څېر و، ډېرو يې بشپړه آزادي درلوده، خو ځينو نورو يې د تاجدارو پاچاهانو پيروي کوله.

هغو خلکو به د قبيلو مشري په غاړه اخيسته چې دنورو په پرتله به يې ډېره پانگه او طاقت درلود.

قبيله د يوه واړه حکومت په څير وه چې د قومي يووالي، متقابلې گټې، د خپلې خاورې د ساتنې او د دښمن د ځپلو پر بنسټ تشکيليده.

د حجاز حکومت د ټولو عربانو لپاره د احترام وړ و، هغه يې د ديني مرکز لاربښود، ساتونکی او خادم گڼلو، د اوسني پارلمان په څيرد ادارو او تشکيلاتو خاوند و، خو دا حکومت ډېر کمزوری او ناتوانه و.

### اقتصادي حالت

اقتصادي حالت د ټولنيز او امنيتي حالت تابع وي، دا قضيه هغه وخت په سمه توگه روښانه کېږي چې د عربو د ژوندانه بڼې اوحالت ته نظر وکړو، تجارت چې د ژوندانه د اړتياوو د پوره کولو تر ټولو لويه وسيله ده، يوازې د سولې او امن په سيوري کې وده کولای شي سوله او امن په جزيرة العرب کې يوازې په حرامو مياشتو (اشهر الحرم) کې شتون درلود او د عربو مشهور بازارونه به په همدې مياشتو کې گرميدل.

د څارويو ساتنې په جزيرة العرب کې رواج درلود، په ځينو سيمو کې به کرنه او زراعت هم ترسترگو کيده، د عربو ډېرې ښځې به په وړيو وريشلو اخته وې خو دا ټول شيان به په جگړه کې له منځه تلل، بې وزلي، لوږه او برېنډتوب د ټولنې په ټولو برخو کې څرگند وو.

دښمني، د قوم او قبيلې پلوي کول د دوی په منځ کې عامه وه،خلك په ډلو او گروپونو ويشل شوي وو او هرې ډلې به يوازې د خپلې قبيلې او خپل ټولي لپاره کار کاوه.

د شخړې او جګړې پر مهال به هیڅا هم دا لټه نه کوله چې حق له کومې ډلې سره دی، بلکې د هغوی کوښښ به دا و چې څرنګه بل لوری زیانمن، ناتوانه او کمزوری کړي.




- زده کوونکي دې، پورتني مطالب په ډله ییزه توګه د سوال او ځواب په طریقه تکرار کړي




۱- د جاهلیت په زمانه کې د عربو دیني او اخلاقي حالت بیان کړئ.
۲- د جاهلیت په زمانه کې د عربو سیاسي او اقتصادي حالت بیان کړئ.




د لوست مهم مطالب په مختصر ډول په خپله ژبه د یوې مقالې په لړ کې ولیکئ.





# د پیغمبر اکرم (صلی الله علیه وسلم) نسب

د نبي کریم ﷺ د نسب سلسله چېرته رسېږي؟ نبوي کورنۍ کومه ده؟

**د پیغمبر اکرم ﷺ نسب**

نوم یې محمد بن عبد الله بن عبدالمطلب بن هاشم قریشي دی، د نسب سلسله یې عدنان او له هغه څخه پورته اسماعیل بن ابراهیم (علیهما الصلاة والسلام) ته رسېږي.

## نبوي کورنۍ:

نبوي کورنۍ په هاشمي کورنۍ مشهوره ده چې نسبت یې د نبي اکرم ﷺ نیکه هاشم بن عبد مناف ته کیږي، لدې امله باید د هاشم او له هغه څخه وروسته امورو او حالاتو ته یوه کتنه وکړو.

**هاشم:**

هاشم چې نوم یې عمرو و، د بني عبد مناف د څوځاته نه یوازنی کس و چې د الله د کور زایرینو ته یې اوبه ورکولې او د هغوی خدمت یې په غاړه درلود، بدای شخص و او د خلکو په منځ کې له زیات شرافت او عزت څخه برخمن و.

**عبدالمطلب:**

عبد المطلب به د هاشم په څیر د الله ﷻ د کور میلمنو ته اوبه ورکولې، د هغوی خدمت به یې کاوه او د خپل قوم په منځ کې داسې شرف، عزت او مرتبې ته ورسید چې هیڅ یو له نیکونو څخه یې دې مقام ته نه و رسیدلی.

د عبدالمطلب په زمانه کې د کعبې شریفې په هکله دوه مهمې پیښې واقع شوې:

۱– د زمزم د څاه کیندل.

۲– د فیل پیښه.

## ۱- د زمزم د څاه د کیندلو لنډه کیسه



د زمزم د کوهي داخلي نقطه



عبدالمطلب ته په خوب کې د زمزم د څاه ځای ور په ګوته شو، بیا یې د څاه په کیندلو پیل وکړ، په څاه کې یې قیمتي شیان، لکه: توري، زغرې او دوه د سرو زرو هوسۍ و موندلې چې (جرهمیانو) د خپلو وتلو په وخت هلته خښې کړې وې. له تورو څخه یې کعبې ته دروازه جوړه کړه او دواړه د سرو زرو هوسۍ یې په دروازه کې کېښودلې او حاجیانو ته یې د زم زم د اوبو ورکول پیل کړ.

کله چې د زمزم څاه ښکاره شوه، نو قریشو له عبدالمطلب سره جنجال او منازعه پیل کړه، هغه ته یې وویل: مونږ ته هم په هغې کې برخه راکړه.

عبدالمطلب وویل: زه داسې کار نه کوم.

له قریشو سره د همدې منازعې په پایله کې عبدالمطلب پر خپل ځان نذر کېښود چې که چېرې الله جل جلاله ده ته لس زامن ورکړل او په هغه څه کې بریا ته ورسېږي چې له قریشو سره په کې ښکیل دی، نو له خپلو زامنو څخه به یو تن په کعبه کې قرباني کړي.

## ۲ - د فيل د پېښې لنډيز




کله چې (حبشي ابرهه) چې په يمن کې د حبشې د پاچا والي و، په کعبه شريفه کې د عربو د زيارت کول او راټوليدل وليدل، نو لوی معبد يې د (صنعا) په ښار کې جوړ کړ، او غوښتل يې چې خلك د مکې په ځای هلته لاړ شي، له شپېته زريز لښکر سره د مکې په لوري روان شو، تر څو کعبه ورانه کړي او د ځان لپاره يې لوی فيل غوره کړ، خپل حرکت ته يې دوام ورکړ، کله چې لوی فيل د (محسر) وادي ته (چې د منی او مزدلفې تر منځ پرته ده) ورسيد، فيل يې خپله سينه پر ځمکه کيښوده او جگ نشو، د کعبې په لوري له ورتگ څخه يې ډډه وکړه.

### عبدالمطلب د ابرهه په وړاندې

عبدالمطلب له څو زامنو سره د ابرهه د پوځيانو د مرکز په لوري حرکت وکړ، کله چې د ابرهه دروازې ته ورسيدل، ابرهه ته وويل شوه، عبدالمطلب ستا د دروازې مخې ته راغلی دی.

هغه وويل: عبدالمطلب څوك دی؟

هغه ته وويل شوه: هغه د قريشو مشر او د مکې د کاروان څښتن دی، هغه خلکو ته په هواره ځمکه او هوايي مرغانو ته د غرونو په لوړو څوکو کې خواړه ورکوي.
ابرهه ورته د داخليدو اجازه ورکړه.
بيا يې خپل ژباړونکي ته وويل: له هغه څخه يې پوښتنه وکړه چې څه اړتيا لري؟
ژباړونکي د حاجت پوښتنه وکړه.
هغه وويل: حاجت مې دا دی چې دوه سوه اوښان مو زما نيولي دي، هغه ماته بيرته راکړه. ابرهه خپل ژباړونکي ته وويل: کله مې چې ته وليدې په حيرت کې شوم، خو کله مې چې ستا خبرې واورېدې، نو ډېر بې اعتنا او بې پروا شوم. زه راغلی يم څو کعبه ونړوم، هغه کعبه چې ستا دين او ستا د پلرونو دين دی، ته د دوو سوو اوښانو په هکله زما سره خبرې کوې؟ او د کعبې په هکله هيڅ نه وايې؟
عبدالمطلب وويل: (**أنا ربُّ الإبل، وللبيتِ ربٌ يَحْمِيه**): زه د اوښانو څښتن يم، کعبه خپل څښتن لري، هغه به يې ساتي.
ابرهه د عبدالمطلب د خبرو په ځواب کې وويل: هيڅوک نشي کولای چې زما د پرمختګ خنډ شي.
عبدالمطلب ورته وويل: نور دا ستا کار دی.
نو هغه دوه سوه اوښان يې چې نيولي وو، عبدالمطلب ته واپس کړل. عبدالمطلب راستون شو او قريش يې له کيسې څخه خبر کړل، بيا يې د کعبې د دروازې په کړۍ او پردو پورې خپل ځان په ډير عجز، ويرې او زارۍ و ځړاوه، عبدالمطلب او قريشو الله تعالی ته پناه يوړه او له هغه څخه د مرستې او ساتنې غوښتونکي شول. بيا له مکې څخه ووتل څو په درو، غارونو او د غرونو په څوکو کې پناه واخلي او په دې انتظار وو چې قادر او توانا خدای څه وخت د ظالمو سرکښانو ټغر ټولوي.
کله به چې د ابرهه لښکر د سهيل، شمال يا ختيځ په لورې روانيده، نو فيل به په چابکۍ سره مخکې کيده او کله به يې چې د کعبې په لوري مخ کاوه فيل به په ګونډو کيده او خپله سينه به يې په ځمکې کېښوده، په همدې حالت کې وو چې الله تعالی

پر هغوی باندې د وادي محسر په سیمه کې ډلې، ډلې مرغان را ولېږل او هغوی یې د سجیل په کاڼو وویشتل، په پایله کې هغوی د خوړل شوو وښو په څیر وګرځیدل، الله تعالی ابرهه په داسې رنځ اخته کړ چې غړي یې بند، بند جدا کېدل، صنعا ته په لار کې و چې زړه یې وچاودید، سینه یې څیرې شوه او هلاک شو.

دا واقعه د محرم په میاشت کې پنځه پنځوس ورځې مخکې د نبي کریمﷺ له زیږیدنې څخه، منځ ته راغله.




- څو تنه زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته د پورتني لوست ځینې مهمې برخې د ټولګیوالو په وړاندې بیان کړي.

## عبدالله د پیغمبرﷺ پلار

د نبي کریم ﷺ د پلار نوم عبدالله و، عبدالله د عبدالمطلب تر ټولو ښه زوی او دی هماغه ذبیح دی.

کله چې د عبدالمطلب زامن لسو تنو ته ورسیدل او پوه شو چې هغوی کولای شي د قریشو مخه ونیسي، نو زامنو ته یې د خپل نذر خبره وکړه او دوی فرمانبرداري ښکاره کړه، نومونه یې په غشو ولیکل او هغه یې د (هبل) ساتونکي ته ورکړل څو په غشو فال ونیسي، غشی د عبدالله په نامه راووت. عبدالمطلب عبدالله او چاړه له ځان سره واخیستل او د کعبې په لور یې منډه کړه تر څو عبدالله حلا ل کړي، قریشو او په ځانګړې توګه ابو طالب او ماماګانو یې د عبدالله د حلالولو مخ نیوی کاوه.

بیا یې غشی د عبدالله او سلو اوښانو تر منځ واچوه، غشی د اوښانو په نامه راووت، عبدالمطلب سل اوښان د عبدالله په ځای حلال کړل.

## د پیغمبر ﷺ مور آمنه

عبدالمطلب د خپل زوی عبدالله لپاره یوه نجلۍ د آمنې بنت وهب بن عبد مناف په نامه غوره کړه، هغه په خپل وخت کې د مرتبې او نسب له حیثه د قریشو بهترینه نجلۍ وه، پلار یې د بني زهره د قبیلې سردار و، عبدالله په مکې کې له هغې سره واده وکړ. بیا وروسته د تجارت په مقصد شام ته ولاړ، په لاره کې ناروغ شو، د ناروغتیا په حالت کې مدینې ته ورسید او هلته د (۲۵) کلنۍ په عمر وفات شو.

## د لوست ځینې مهم ټکي

۱ – د کعبې شریفې عظمت او لویې.

۲ –د بیت الله او قریشو په مقابل کې د ابر هه کینه او حسد.

٤ – پدې اړوند کلك او راسخ ایمان درلودل، چې پاك الله جَلَّ جَلَالُهُ د خپل کور دفاع او ساتنه په خپله کوي.

### فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییزه توګه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

### ارزونه

۱. نبوي کورنۍ په هاشمي کورنۍ مشهوره ده، هاشم څوك دی؟

۲. د الله د کور په هکله عبدالمطلب ته دوه مهمې واقعې پیښې شوې، هغه څه وې؟ څرګندې یې کړئ.

۳. د نبي کریم ﷺ پلار څه وخت وفات شو؟

### کورنۍ دنده

د لوست مهم مطالب په مختصر ډول په خپله ژبه د یوې مقالې په لړ کې ولیکئ.





# د نبي کریم ﷺ پیدا ښت

د نبي کریم ﷺ میلاد په ټول انساني تاریخ کې یوه لویه پیښه وه چې د تاریخ او بشري ژوند مجرا ته یې بدلون ورکړ.

نو د میلاد پیښه یې څنګه وه؟ د ماشومتوب دوره یې څنګه تېره شوه؟

## مولد النبي ﷺ

پیغمبراکرم ﷺ د دوشنبې په سهار چې د ربیع الاول دولسمه وه، د ابو طالب په کور کې د بني هاشم له څوځاته دنیا ته تشریف راوړ. دا میلاد د عام الفیل چې د (۵۷۱)م کال د اپریل د میاشتې له شلمې یا دوه ویشتمې نیټې سره برابره ده، منځ ته راغی.

کله چې محمد ﷺ دنیا ته راغی، مور یې هغه خپل نیکه عبد المطلب ته ولیږه او همدارازهغه ته یې د خپل لمسي د زیږېدنې په هکله زیری ورکړ، عبدالمطلب خوشحاله شو او لمسی یې د کعبې شریفې داخل ته یووړ، د الله تعالی شکر یې اداء کړ او هغه ته یې د (محمد) نوم غوره کړ په داسې حال کې چې دا سې نوم په عربو کې نا اشنا و او هغه یې په اوومه ورځ سنت کړ. لومړنۍ ښځې چې محمد ﷺ ته یې د هغه له مور څخه وروسته شیدې ورکړې، ثویبه د ابولهب وینځه وه.

## د بني سعد په قبیله کې

د عربو ښاریانو عادت درلود چې د خپلو ماشومانو لپاره به یې شیدې ورکوونکې ښځې (مرضعې) کتلې تر څو د هغوی ماشوم د ښار له ناروغیو څخه لرې خپل ژوند تېرکړي، قوي جسمونه او اعصاب ولري او د عربي فصیحه ژبه په اصلي ټاټوبي کې په سمه توګه زده کړي.

عبدالمطلب هم د بني سعد بن بکر له قبيلې ښځه يوه ښځه د (حليمه سعديه) په نامه، د خپل ماشوم د شدو ورکولو لپاره غوره کړه.

د پيغمبرﷺ رضاعي وروڼه - (حمزه بن عبد المطلب، عبد الله بن حارث، ابو سفيان بن حارث) او رضاعي خويندې يې (انيسه بنت الحارث او شيما بنت الحارث) دي.

## د مهربانې مور په غېږ کې

حليمې سعديې د شيدو د مودې له پوره کيدو ځخه وروسته محمدﷺ خپلې مور ته وسپاره، تر شپږ کلنۍ پورې يې د خپلې مور په څنګ کې ژوند کاوه، آمنې بي بي هوډ وکړ چې د خپل ميړه په ياد په يثرب کې د هغه د قبر زيارت وکړي.

آمنه له خپل يتيم زوی محمدﷺ، خادمې ام ايمن او پالونکي عبدالمطلب سره له مکې څخه روانه شوه او د پنځو سوو کيلو مترو فاصلې له وهلو وروسته يثرب ته ورسيده. يوه مياشت يې هلته تېره کړه، د بېرته را ستنيدو پر مهال آمنه ناروغه شوه او د لارې په اوږدو کې يې ناروغي سختيده چې بالاخره د (ابواء) په سيمه کې چې د مکې او مدينې تر منځ پرته وه، وفات شوه او هم هغلته دفن شوه.

## له زړه سواندي او خواخوږي نيکه سره

عبدالمطلب له محمدﷺ سره يو ځای مکې ته راستون شو، د عبد المطلب زړه سوی، مهرباني او شفقت پر خپل يتيم لمسي باندې ورځ په ورځ زياتېده، ځکه په داسې ازمېښت کې ولويد چې د ده تېر پرهرونه يې بيا را تازه کړل، په محمدﷺ يې زړه سوی او نرمي دومره زياته شوه چې په هېڅ يو زوی يې دومره نه وه زياته شوې، هغه به ويل: «په الله قسم چې د ده په وجود کې لويي او دبدبه نغښتې ده»، نو له هغه سره به په يوه فرش کيناسته، د هغه په سر به يې لاس را کاږه او د هغه هر کار د عبد المطلب د خوشحالۍ لامل ګرځيده.

لنډه دا چې اته کاله يې د خپل ارزښتناك عمر تېر کړل چې نيکه يې (عبدالمطلب) په مکه کې وفات شو او له وفات څخه مخکې يې ابو طالب چې د محمد ﷺ تره و، د خپل لمسي د سرپرستى او پالنې لپاره وګماره.

## د خپل تره د سيورې لاندې

ابو طالب د خپل وراره محمد ﷺ حق لکه څنګه چې لازم و، اداء کړ. پيغمبر ﷺ يې له خپل زوى سره يو ځاى کړ هغه ته به يې ځانګړې درناوى او عزت ورکاوه او د تل لپاره يې ملاتړ و.




- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ييزه توګه د سوال او ځواب په طريقې سره تکرار کړي.




١. پيغمبر ﷺ څه وخت پيدا شو؟
٢. د محمد ﷺ د مور د وفات پېښنه شرحه کړئ.
٣. د رسول الله ﷺ د مور له مړينې وروسته د هغه نيکه له رسول الله ﷺ سره څرنګه کړنه کوله؟




د لوست مهم مطالب په مختصر ډول په خپله ژبه د يوې مقالې په لړ کې وليکئ.





# محمد ﷺ د ځوانۍ په درشل کې

محمد ﷺ د وړوکتوب دوران تیر کړ څو د بلوغ مرحلې ته ورسید په میړانه، امانت، صبر او استقامت کې بې سارى و، همیشه یې رښتیا ویل او له ناوړو کارونو څخه یې ځان ژغوره تر دې چې د خلکو په منځ کې په (امین) مشهور شو.
علي بن ابي طالب رضي الله عنه وايي: پيغمبر ﷺ د ښه خوى، نرم مزاج او ورين تندي خاوند و، هيڅكله هم بدخويه، زړه سختى، بد ويونكى او عيب پلټونكى نه و... نو د ده د وړوكتوب او د ځوانۍ پر مهال څه نښې ښكاره شوې چې ځينو يې د ده پر نبوت گواهي وركوله، دغه پېښې چې را منځ ته شوې، كومې دي؟

## بحيرا راهب

كله چې پيغمبر ﷺ دولس كلنۍ ته ورسيد، كاكا يې ابو طالب هغه د تجارت په نيت له ځان سره شام ته بوتلو، ترديې چې بصرې ته چې په شام كې د عربو يوه سيمه گڼل كيده او د يونانيانو له سلطې لاندې وه؛ ورسيدل. په دې ښار كې يو راهب د (جرجيس) په نامه چې په (بحيرا) مشهور و، ژوند كاوه، كله چې قافله ورسيده؛ بحيرا د دې قافلې خواته ورغى او په پوښتنو او پلټنو يې پيل وكړ ترڅو د پيغمبر ﷺ حضور ته ورغى او هغه يې له لاسه ونيوه او وه يې ويل: دا (كس) د عالميانو سردار او د پروردگار راليږل شوى پيغمبر دى، دا هغه څوك دى چې پاك الله به يې د عالميانو د رحمت لپاره غوره كوي.
بيا يې دوى ته ډېره درنه ميلمستيا وكړه، د دوى اكرام او عزت يې وكړ، له ابوطالب څخه يې وغوښتل چې هغه بيرته مكې ته بوځي او په راتلونكي كې يې هم د شام له راتگ څخه وساتي، هسې نه چې يونانيان او يهوديان ده ته تاوان ورسوي. ابوطالب د راهب خبره ومنله او دى يې له خپلو زامنو سره مكې ته ولېږه.

## د فجار جگړه

نبي كريم ﷺ شل كلن و چې د عكاظ په بازار كې د قريشو چې بني كنانه هم ورسره ملگرې وو، او د قيس غيلان د قبيلې تر منځ جگړه پيښه شوه، دا جگړه د (فجار) په نامه مشهوره ده.
ددې جگړې لامل دا و چې د بني كنانه قبيلې د قيس له قبيلې څخه درې سړي ووژل، سمدستي داخبره د عكاظ په بازار كې خپره شوه، دواړه خواوې د جنگ لپاره

راولاړې شوې او یو له بل څخه یې د دیت غوښتنه کوله، په دې جنګ کې د قریشو او بني کنانه سرمشري د حرب بن امیه په غاړه وه، د جنګ په لومړۍ ورځ د قیس قبیله پر بني کنانه بر لاسې وه، خو د ورځې په پای کې جګړه دقریشو په ګټه تمامه شوه.
د جګړې پر مهال د قریشو ځینو وګړو دواړه خواوې سولې ته را وبللې، په دې توګه چې دواړه خواوې دې خپل مړي وشمیري هر لوري چې ډېر مړي درلودل، د هغو دیت دې واخلي، سوله په همدې توګه تر سره شوه، کومه دښمني او کرکه چې د دوی تر منځ وه، له منځه لاړه او دا جګړه د (فجار) په نامه له دې کبله ونومول شوه چې په دې جګړه کې د حرامو میاشتو حرمت او عزت له منځه تللی و.

## د فضول تړون (حلف الفضول)

د فضول تړون له هغه عزتمن تړون څخه عبارت و چې د بیوزلو او غریبانو د حقوقو د دفاع او ساتنې لپاره تر سره شوی و، کله چې قریش د فجار له جګړې څخه راستانه شول، نو هغوی دا تړون په مکه کې د عبدالله بن جدعان په کور کې وکړ.
په دې تړون کې ټولو ژمنه وکړه چې په مکه مکرمه کې، که د مکې اوسیدونکی وي یا د کوم بل ځای، په هر چا چې تیری او ظلم وشو، نو د مظلوم په څنګ کې به ودرېږو او له هغه څخه به ملاتړ کوو تر څو مظلوم ته د هغه حق ورکړل شي. قریشو دا تړون د (حلف الفضول) په نامه ونوماوه.
دې تړون د قریشو مرتبه د نورو قبایلو په منځ کې لوړه کړه، کله چې پیغمبر ﷺ په دې تړون کې برخه واخیسته، په دغه وخت کې شل کلن و.
داتړون د (حلف الفضول) په نامه ځکه ونومول شو چې دې تړون د (جرهم) د قبیلې (حلف الفضول) له تړون سره ورته والی اومشابهت درلود کومه چې پخوا په مکه مکرمه کې میشته وه. هغه تړون د داسې کسانو په زیار شوی و چې د هغوی د نومونو پیل د (فضل) په لفظ سره، شوی و، لکه: (فضل بن حارث، فضل بن وداعه، فضل بن فضاله)، له دې امله په (حلف الفضول) مشهور شو. د دې دواړو تړونونو ترمنځ یو بل ورته والی په دې کې و چې ددواړو تړونونو اساس اوبنسټ یو شان و، لکه: د دوو جګړه مارو ډلو ترمنځ عدالت او انصاف تامینول، د مظلوم حق له ظالم څخه اخیستل، دلارویو او مسافرو حق له استوګنو څخه اخیستل.دغه لوی انساني تړون پر محمد ﷺ باندې ډېره ژوره اغیزه وکړه ځکه چې دغه تړون خلک د خیر او ښېګڼې لوري ته را وبلل. نبي کریم ﷺ په دې تړون کې تشریف درلود، وروسته له دې چې په پیغمبرۍ عزتمن شو ویې فرمایل: د عبد الله بن جدعان په کور کې چې په کوم تړون کې حاضر وم، هغه ماته له سرو اوښانو څخه زیات ارزښتناک و، که په اسلام کې هم یوه داسې کار ته وبلل شم، نو وبه یې منم.

## ستونزمن او له هڅو ډک ژوند

پيغمبر ﷺ د ځوانۍ په پيل کې د بني سعد په قبيله کې مېږې څرولې، همدارنګه يې په مکه مکرمه کې د څو (قيراطونو) په بدل کې د مکې د خلکو مېږې څرولي دي.
کله يې چې د ځوانۍ په درشل پښه کېښوده، نو تجارت ته يې مخه کړه، نبي کريم ﷺ له سائب مخزومي سره ګډ تجارت کاوه چې د هغه بې سارى شريک و، کله چې مکه فتحه شوه، سائب مخزومي پيغمبر اکرم ﷺ ته هر کلى وويلو او ورته يې وويل: زما ګرانه وروره او د تجارت ملګريه په خير راغلې.
په پنځه ويشت کلنۍ کې د خديجه الکبرى د مال په اړوند، شام ته د تجارت لپاره لاړ، خديجه بنت خويلد يوه شريفه، بډايه او تاجره ښځه وه په خپل مال کې د تجارت لپاره به يې ځينې نارينه استخدامول او هغه ته به يې يوه ټاکلې برخه ورکوله. قريشو د تجارت دنده درلوده، کله چې خديجه د نبي کريم ﷺ له رښتينولۍ، اخلاص، امانت دارۍ، ځوانمردۍ او نورو لوړو اخلاقو څخه خبره شوه، نو يو سړى يې هغه ته وليږه او له انحضرت ﷺ څخه يې وغوښتل چې د دې پانګه د تجارت لپاره د دې د مريي ميسره په ملتيا شام ته يوسي، پيغمبر ﷺ د هغې وړانديز ومانه او له ميسره سره شام ته روان شو.




- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ييزه توګه د سوال او ځواب په طريقې سره تکرار کړي.

### له خديجې (رضي الله عنها) سره واده

کله چې نبي کريم ﷺ له شام څخه مکې ته را ستون شو؛ خديجې رضي الله عنها په خپل مال کې داسې امانت او برکت وليد چې هيڅکله يې هم نه و ليدلى، همدا رنګه کله چې ميسره خپل د سترګو ليدلى حال (د نبي کريم ﷺ صفتونه، روغ فکر او ريښتينولي) خديجې ته بيان کړه، خديجې خپل ورک شوى ګوهر بياموند.
د قريشو مشرانو او مخورو خلکو له خديجې رضي الله عنها سره نکاح کول غوښتل، خو خديجې دې کار ته غاړه نه اېښوده. خديجې خپله د زړه خبره خپلې د راز ملګرې نفيسې بنت منبه سره شريکه کړه، نو نفيسه د نبي کريم ﷺ حضور ته ورغله او د خديجې د نکاح خبره يې ورسره وکړه، هغه قبوله کړه، بيا يې له خپل کاکا سره مجلس وکړ، هغوى د خديجې کاکا ته ورغلل او خديجه يې د نبي کريم ﷺ لپاره وغوښته. د هغه له رضا وروسته نکاح وتړل شوه، د نکاح په مراسمو کې د بني هاشم اوبني مضرد قبيلو مشران حاضر وو، د نکاح مهر

شل اوښې وټاکل شوې دا نکاح د شام له سفر څخه دوه میاشتې وروسته ترسره شوه.

**پندونه او نصیحتونه:**

۱-عدالت په هر وخت او د هر چا له خوا چې یې وړاندیز وشي، د ستاینې او منلو وړ دی.

۲- د فضول تړون د جاهلیت د تیارو په وړاندې د یو روښان څراغ په څیر و، دا خبره په دې دلالت کوي چې په یوه ټولنه یا یو نظام کې د فساد خپریدل د ټولو فضلیتونو د منتفي کېدو په معنا نه ده.

۳- ظلم  په هره بڼه چې وي مردود دی، که څه هم په ډېر لږ شمیر خلکو باندې واقع شي، اسلام له ظلم سره په جګړه کې دی او د مظلوم په څنګ کې پرته له رنګ، دین، وطن او جنس څخه ولاړ دی.

٤- د خیر او نیکو کارونو لپاره د تړون جواز، مسلمانانو ته جائز دی چې د حلف الفضول په شان تړونونه له کفارو سره لاسلیک کړي، په دې شرط چې د اسلام له مقاصدو سره مطابقت ولري.

٥- مسلمان باید په ټولنه کې همیشه فعاله ونډه واخلي او د چاپیریال په حوادثو کې باید هیڅکله هم بې پروا پاتې نشي.

٦- الله تعالی خپل پیغمبر ته مناسبه میرمنه غوره کړه، ترڅو د هغه مرسته وکړي غمونه یې کم کاندي او د رسالت د کړاوونو په زغملو کې یې مرستیاله وي.

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییزه توګه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱- د پیغمبر ﷺ اخلاق د ځوانۍ پر مهال او له پیغمبرۍ څخه د مخه څرنګه وو؟

۲-آیا نبي کریم ﷺ د ځوانۍ پرمهال کوم ټاکلی کسب او کار درلود؟ څرګند یې کړئ.

۳- له حلف الفضول څخه څه پندونه او نصیحتونه اخیستلای شو؟ څرګند یې کړئ.

٤- بحیرا راهب پیغمبر ﷺ څرنګه وپیژنده؟

## کورنۍ دنده

د لوست مهم مطالب په مختصر ډول په خپله ژبه د یوې مقالې په لړکې ولیکئ.



نهه وېشتم لوست

# د کعبې شریفې جوړول



د کعبې شریفې پخوانی انځور

د کعبې شریفې ودانول:

نبي کریم ﷺ د (۳۵) کلونو په عمر کې و چې قریش د کعبې جوړولو لپاره راغونډ شول، د کعبې د چت جوړول هغوی ته زیات ارزښت درلود، خو د کعبې له ړنګولو یې وېره درلوده.

قریشو د کعبې د چت د جوړولو لپاره مناسب لرګي برابر کړل، د کعبې کوټه د اسماعیل علیه السلام له وخته تر دغه دمه چت نه درلود او د تیږو یو دیوال و، په همدې کال کې پر مسجد الحرام باندې سیلاب راغی، نږدې وه چې کعبه ورانه او ویجاړه شي، قریش دې ته اړشول چې کعبه شریفه له سره جوړه کړي.

قریشو پرېکړه وکړه چې د کعبې په جوړولو کې له حلال او پاکیزه مال څخه پرته بل مال مصرف نه کړي او هغه پیسې چې له ناروا لارو، لکه سود او قمار څخه په لاس راغلې وي د کعبې په جوړولو کې ورڅخه استفاده ونه کړي.

وليد بن مغيره مخزومي د کعبې په ورانولو پيل وکړ، کولنګ يې را واخيست او ويې ويل: (اې پروردګاره! له نيکۍ نه پرته بله هيڅ اراده نه لرم) د رکـنينو برخه يې ورانه کړه، کله چې هغه ته په لومړۍ ورځ کومه ستونزه پيښه نه شوه؛ نو په دويمه ورځ يې خلکو په ورانولو کې ملاتړ او پيروي وکړه او هغو بنسټونو ته ورسيدل چې د ابراهيم ؑ په لاس جوړ شوي وو.

له هغه وروسته يې د کعبې په جوړولو پيل وکړ، داسې چې کعبه يې په څو برخو وويشله او د هرې برخې جوړول يې يوې قبيلې ته وسپارل. هرې قبيلې د کاڼو په راوړلو او په جوړولو پيل وکړ، د کعبې شريفې د جوړولو دنده د يو رومي معمار په غاړه وه.

کله چې ديوال د حجرالاسود د ايښودلو تر ځايه پورته شو؛ نو دا چې د حجر الاسود د کاڼي دکيښودلو وياړ به د چا په برخه شي، د دوی تر منځ اختلاف پيدا شو او تر څلورو يا پنځو ورځو پورې يې دوام وکړ، نږدې و چې دا اختلاف د حرم شريف په منځ کې په يوې خونړۍ جګړې بدل شي.



## فعاليت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په انفرادي او يا ګروپي شکل د سوال او ځواب په طريقې سره تکرار کړي.

## په حجر اسود کې د تحکيم وا قعه



حجر اسود د سپينو زرو له غلاف سره



حجر اسود پرته له غلاف څخه

ابو امیه بن مغیره وړاندیز وکړ: د دې جنجال د اوارولو په هکله به هغه لومړنی سړی چې سهار مهال د جومات په دروازه راننوځي؛ حَکَم ټاکو، ټولو ومنله. الله غوښتل چې لومړنی سړی کوم چې د جومات په دروازه را ننوځي؛ هغه به رسول الله ﷺ وي کله چې خلکو هغه ولید؛ نو د خوښۍ غږونه یې پورته شول او ویې ویل: دا هماغه امین دی، دا محمد ﷺ دی؛ موږ د ده پریکړه منو هغه ته یې د شخړې په هکله معلومات ورکړل. محمد ﷺ یو څادر راوغوښت، حجرالاسود یې په څادر کې کیښود، د جنجال کوونکو قامونو له مشرانو څخه یې وغوښتل چې هغوی ټول د څادر پیڅکې ونیسي او هغه پورته کړي او ځای ته یې ورسوي، بیا یې په خپله د حجرالاسود تیږه راواخیسته او په خپل مبارك لاس یې په خپل ځای کې کیښوده. دا د جنجال د اوارولو یوه مناسبه طریقه وه چې ټول خلك پرې راضي شول.

د کعبې د جوړولو پر مهال د قریشو مال کم شو، نو سهیلي برخه یې پریښوده چې تر اوسه پاتې ده او د حجر یا (حطیم) په نامه یادیږي همدارنګه د کعبې دروازه یې هم له ځمکې څخه لوړه کړه.

د کعبې د جوړولو پر مهال پیغمبر ﷺ ته دوه ځانګړي ویاړونه ور په برخه شول:
یو د مکې د قبیلو ترمنځ د احتمالي جنګ مخنیوی و او بل په خپلو مبارکو لاسونو د حجر الاسود ایښودل په ټاکلي ځای کې و.

## له بعثت څخه وړاندې د نبوي سیرت لنډه پیژندنه

پیغمبر ﷺ د ډېرو نیکو صفاتو خاوند و، لکه: له خلکو سره ښیګڼه، تواضع او عاجزي، میړانه، ریښتینولي، میلمه پالنه، امانتداري، سخاوت، په وعده وفا، انصاف،شفقت پاك نفسي، کلکه او مظبوطه اراده او داسې نور.

هغه شراب نه څښل، د بتانو نذرانې یې نه خوړلې، په هغو مرا سموکې چې د بتانو د لمانځنې لپاره به تیاریدل؛ ګډون نه کاوه، د ژوند له لومړنیو شیبو څخه یې له بتانو څخه کرکه درلوده، بلکې د ځمکې په سر یې هغه تر ټولو موجوداتو بدګاڼه او نه یې

پر بتانو قسم زغملای شو.
محمد ﷺ د خلکو تر منځ په ښو خويونو او غوره خصلتونو شهرت درلود. هغه تر ټولو ښه ګاونډی، تر هر چا د اوچتو اخلاقو څښتن، د ډېر لوی زغم خاوند، په خبرو کې تر ټولو ريښتينی، زيات مهربان، نرم خويه او په وعدو ولاړ شخص و. لنډه دا چې د انسانيت او د کمال ټول صفتونه پر هغه ﷺ تمام شوي وو.

**د کعبې شريفې د جوړولو تاريخ:**

۱- د کعبې شريفې د جوړولو په اړوند ډول، ډول روايتونه راغلي دي.
ځينو مؤرخينو د کعبې تاريخ حتی د آدم عليه السلام له زمانې څخه ډېر مخکې په ګوته کړی او وايي: د آدم عليه السلام له زيږيدنې څخه لا ډېر مخکې ملائکو کعبه شريفه جوړه کړې وه.
خو بله ډله په دې نظر ده چې: لومړنی هغه کس چې کعبه يې جوړه کړه آدم عليه السلام و او کله چې يې د کعبې ودانۍ سرته ورسوله الله جل جلاله ورته وحې وکړه چې له کعبې څخه طواف وکړي او ورته يې وويل: (ته لومړنی انسان او دا لومړنی کور او ودانۍ ده).
له هغه څخه وروسته ډېرې پيړۍ تېرې شوې او د نوح عليه السلام زمانه راورسيده، نوح عليه السلام د کعبې د حج مراسم اداء کړل. د څو پيړيو په تيريدو سره د ابراهيم عليه السلام زمانه راغله هغه هم د کعبې بنيادونه اوچت کړل.
په هر حال هغه څه چې د قرآن کريم په قطعي دليل ثابت دي هغه دادي: يوازيني هغه دوه سړي چې د بيت الحرام بنيادونه يې ودرول هغه ابراهيم او د هغه زوی اسماعيل (عليهما السلام) و.

۲- کعبه شريفه څلور ځله جوړه شوې او يو ځل په پاخه شان ترميم او رغول شوې ده:
لومړی ځل: د لومړي ځل لپاره کعبه ابرا هيم عليه السلام جوړه او اسماعيل عليه السلام به ورسره مرسته کوله.
دويم ځل: د پيغمبر ﷺ له بعثت څخه دمخه قريشو کعبه له سره جوړه کړه چې پيغمبر ﷺ هم په کې شريک و.

دريم ځل: د يزيد بن معاويه په زمانه کې، کله چې د عبد الله بن زبير رضي الله عنه د محاصرې پر وخت يزيديانو کعبه په منجنيقو وويشتله او اور يې واخيست، عبدالله بن زبير رضي الله عنه هغه له سره آباده کړه.

څلورم ځل: د عبد الملک بن مروان په زمانه کې، کله چې عبد الله بن زبير رضي الله عنه ووژل شو عبد الملک بن مروان کعبه په هغه نقشه جوړه کړه څرنګه چې د پيغمبر صلی الله علیه وسلم په زمانه کې وه.

پنځم ځل: د کعبې ترميم او رغونه:

د سعودي پاچا خادم الحرمين الشريفين ملک فهد بن عبد العزيز آل سعود کعبه د مسجد الحرام په شمول دننه او بهر ټوله په اساسي توګه ترميم او ورغوله.



## فعالیت

زده کوونکي دې د لوست مطلبونه په ډله ییزه توګه د پوښتنې او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱- د هغې شخړې لامل چې د حجرالاسود د کېښودلو پر مهال د قبایلو تر منځ پیښه شوه، څه و؟

۲- د نبي کریمﷺ د تحکیم قضیه څنګه منځ ته راغله؟ په لنډه توګه یې شرحه کړئ.

۳- هغه نیک صفتونه چې له بعثت څخه وړاندې په نبي کریمﷺ کې را غونډ شوي وو؛ ځیني له هغو څخه بیان کړئ.

٤- له بعثت څخه د مخه د پیغمبرﷺ غوره اخلاق چې له خلکو سره یې کول وارزوئ.

## کورنۍ دنده

د لوست مطالب په خپل تعبیر سره ولیکئ او هم ورته مناسب عنوان غوره کړئ.



دیرشم لوست

# د نبوت او رسالت په سیوري کې

وروسته له دې چې الله تعالی پیغمبرﷺ ته د نبوت او رسالت عزت ور په برخه کړ؛ نو ژوند یې په دوو برخو ویشل کېږي چې هره یوه برخه یې خپلې ځانګړتیاوې لري. دا دوه برخې له مکي او مدني دورو څخه عبارت دي، نو دا دوه دورې څه ځانګړتیاوې لري؟ کومو مرحلو ته شاملیدای شي؟

## مکي دور

دواړو دورو ګڼې مرحلې تیرې کړې دي او هره مرحله یې خپلې ځانګړتیاوې لري.
که چیرې هغو حالاتو ته ښه ځیر شو چې له دغو پړاوونو تیر شوي دي؛ موږ کولای شو مکي دوران چې تقریباً (دیارلس کاله) و په دریو برخو وویشو:

۱- د پټې بلنې مرحله چې درې کلونه وه.

۲- مکې والو ته ډاګیزه او ښکاره بلنه چې د بعثت له څلورم کال څخه پیل او د بعثت د لسم کال تر آخره پورې یې دوام وکړ.

۳- له مکې څخه بهر د دعوت د خپریدو مرحله چې د بعثت لسم کال له وروستیو څخه پیل او مدینې منورې ته تر هجرت پورې دوام وکړ.




زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییزه توګه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.





د حراء غار قبلې ته مخامخ

## د حرا غار(جبل النور)

کله چې د نبي کريم ﷺ عمر څلويښتو کلونو ته نږدې شو، نوګوښه والی او خلوت يې اختيار کړ، اوبه او خواړه به يې له ځان سره واخيستل او د حراء د غار په لور چې په (جبل النور) کې موقعيت لري؛ روان شو. که چېرې تاسې له مکې مکرمې څخه د سهيل په لور د يوه ساعت په واټن لاړ ووهئ؛ نو هلته به تاسې يو غر ووينئ دا غر همغه د جبل النور غر دی چې د حراء غار پکې شتون لري او نبي کريمﷺ به د روژې (رمضان) مياشت په دغه غار کې تېروله، خپل وخت به يې په عبادت، د کايناتو په ننداره او د هغه قدرت په سوچ او فکر کې تېراوه چې د کايناتو تر شا وجود لري، هغه شرکي عقايد چې د ده قوم پرې اخته و، ده ته د منلو وړنه وو او د روښنايي هغه لار چې د دهﷺ اعتماد او رضا پرې حاصليدای شوه له ده څخه ورکه وه، نو له دې امله به هر وخت پريشانه و.

دغه خلوت اوعزلت د دې لپاره و؛ ترڅو دیﷺ د هغه لوی مسئووليت او امانت لپاره چې د ده په انتظار کې و، تيار شي.

## جبرائیل علیه السلام له وحي سره




کله چې د پیغمبرﷺ عمر پوره څلوېښت کاله شو؛ نو د نبوت وړانګو یې په ځلیدو پیل وکړ، داسې چې د مکې هر یوه کاڼي به ورته سلامونه کول، هر خوب به یې چې لیده حقیقت به یې د روڼ سهار په څېر څرګندیده په همدې توګه شپږ میاشتې تیرې شوې.

د رمضان میاشت په داسې وخت کې را ورسیده چې پیغمبرﷺ د دریم کال په رمضان کې د حراء په غار کې ګوښه ناست و، الله تعالی وغوښتل تر څو د ځمکې خلک له خپل رحمت څخه برخمن کړي؛ نو محمدﷺ یې په نبوت عزتمن کړ او جبرائیل(علیه السلام) یې د قرآن کریم له څو آیتونو سره د ده حضور ته ورولیږه.

## وحې څه وخت نازله شوه؟

د دوشنبې په ورځ د رمضان المبارک یوویشتمه چې د (٦١٠) میلادي کال د اگست له لسمې نیټې سره سمون خوري، کله چې پیغمبر ﷺ د څلویښت کلنی په عمر کې و؛ وحې پرې نازله شوه.

عائشه صدیقه (رضي الله عنها) پدې هکله داسې روایت کوي: د رسول الله ﷺ د وحې پیل له نیکو او ښو خوبونو څخه شوی و، د حرا په غار کې به یې له خلکو گوښه ژوند کاوه، پرته له دې چې کورته ولاړ شي، څو مسلسلې شپې به په عبادت مشغول و او د هغو شپو لپاره به یې توښه ورسره وړله، بیا به خدیجې ته راستون شو او همغومره نوره توښه به یې له ځان سره واخیستله.

د حرا په غارکې و چې وحې پرې نازله شوه. ملائکه ورته راغله او ورته یې وویل: «ولوله»، ده وویل: «زه لوستل نشم کولای»، رسول الله ﷺ وویل: «بیا ملائکې زه ټینگ ونیولم او زور یې کړم، بیا یې پریښودم»، بیا یې وویل: «ولوله»، ما وویل: «زه لوستونکی نه یم»، بیا یې دویم ځلې ونیولم او ډېر زیات یې زور کړم او ډېر په تکلیف شوم، بیا یې پریښودم او ویې ویل: ولوله ! ما وویل: «زه لوستونکی نه یم»، دریم ځلې یې ونیولم او را ټینگ یې کړم او بیا یې پریښودم او راته یې وویل:

﴿ ٱقۡرَأۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلَّذِي خَلَقَ ۝ خَلَقَ ٱلۡإِنسَٰنَ مِنۡ عَلَقٍ ۝ ٱقۡرَأۡ وَرَبُّكَ ٱلۡأَكۡرَمُ ۝ ٱلَّذِي عَلَّمَ بِٱلۡقَلَمِ ۝ عَلَّمَ ٱلۡإِنسَٰنَ مَا لَمۡ يَعۡلَمۡ ۝ ﴾[1]

**ژباړه**: ولوله (ای پیغمبره)! د خپل رب په نوم چې هغه پیدا کړل، پیدا یې کړ انسان د کلکې شوې وینې له ټوټې څخه، ولوله او ستا رب ډېر مهربان دی چې هغه د قلم په مرسته علم وښوده، انسان ته یې د هغه څه علم ورکړ چې هغه پرې نه پوهېده.

پیغمبر ﷺ د حرا له غاره راستون شو، زړه یې درزیده او خدیجې رضی الله عنها ته یې وویل: «ما ونغاړه، ما ونغاړه»، هغه یې په څادر کې ونغاړه تر څو یې وېره ورکه شوه، خدیجې رضی الله عنها

(١) العلق: ١ - ٥.

ته يې وويل: «په ما څه شوي دي؟» خديجه (رضی الله عنها) يې له هغې پيښې څخه چې په ده تيره شوې وه، خبره کړه. خديجې (رضی الله عنها) وويل: «هيڅکله داسې نده، په الله قسم دی چې پاك الله به تا نه رسوا کوي ځکه چې ته خپلوي پالې، د بيوزلانو مرسته کوې، پرديوتي خلك تر منزله رسوې، د ميلمه عزت او پالنه کوې او د حق په لاره کې د ستونزو د لرې کولو لپاره ملا تړې».

خديجه (رضی الله عنها) له رسول اللهﷺ سره، خپل د تره زوی ورقة بن نوفل ته ورغله، هغه په جاهليت کې د نصرانيت دين قبول کړی و او يو سپين ږيرى بوډا سړی و چې سترګو يې ليد نشو کولی.

خديجې (رضی الله عنها) ورته وويل: «اې د تره زويه! د خپل وراره خبرې دې واوره»، ورقه ورته وويل: «اې وراره! څه شوي دي»؟ پيغمبرﷺ هغه ته ټوله کيسه بيان کړه. «ورقه وويل دا هماغه ملائکه ده چې الله تعالی موسی (عليه السلام) ته هم را ليږلې وه، اې کاشکې زه ځوان او غښتلی وای (تر څو ستا مرسته مې کړې وای) او کاشکې چې زه هغه وخت ژوندی وای کله چې تا خپل قوم له کور او وطنه وباسي».

پيغمبرﷺ وويل: «آيا هغوی به ما له مکې څخه وباسي» ؟ ده وويل: «هو! هر چا چې ستا په څير پيغام راوړی دی، دښمني ورسره شوې ده، نو که زه چېرته هغه وخت ژوندی وم؛ په ټول توان او طاقت سره به ستا ملاتړ وکړم».

له دې پيښې وروسته ورقه ډېر ژر وفات شو او وحې هم بنده شوه.



## فعاليت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ييز توګه د سوال او ځواب په طريقې سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱. مکي دور په دوو پړاوونو ویشل کیږي، نومونه یې واخلئ.

۲.  ولې نبي کریمﷺ له پیغمبرۍ مخکې د حرا غار ته تشریف وړلو؟

۳. کله چې پیغمبرﷺ ورقه بن نوفل د وحې له نازلیدو خبرکړ؛ د هغه عکس العمل څه و؟

## کورنۍ دنده

د لوست مطالب په خپل تعبیر سره ولیکئ او هم ورته مناسب عنوان غوره کړئ.





# د وحې د نزول ادامه

## د وحې ډولونه

د وحې ډولونه او مرتبې په لاندې ډول دي:

١ - رښتيني خوبونه: دا خوبونه د پيغمبر ﷺ لپاره د وحې پيل و.

٢ - هغه څه چې ملايکې د ده په ذهن او زړه کې تلقينول، پرته له دې چې ملايکه ووينې.

٣ - کله به ملايکه د يوه سړي په څيره کې نبي کريم ﷺ ته راتله ترڅو هغه څه چې ورته وايي، ښه پرې پوه شي، په دغسې حالت کې به صحابه وو هم جبرائيل عليه السلام ليده.

٤ - پرښته به د زنګ د کړنګار په څير ورته راتله او د دې ډول وحې زغمل به ورته سخت تماميدل، حتى په سخته يخنۍ کې به د ده په مبارکې تندې د خولو څاڅکي معلوميدل، او که په دغه حالت کې پر سپرلۍ سپور و نوسپرلۍ به پر ځمکه ګونډې لګولې.

٥- پيغمبر اکرم ﷺ به کله ملائکه په خپل اصلي شکل کې ليدله او د الله جل جلاله له خوا راليږل شوی فرمان به يې ورته سپارلو. دا ډول وحې دوه ځله پيښه شوې ده چې د (النجم) په سورت کې يې بيان راغلی دی.

٦ – آسمان ته د تللو پر وخت هم الله جل جلاله پر هغه ﷺ وحې نازله کړه، لکه د معراج په شپه چې په پيغمبر ﷺ وحې نازله شوه.

٧ – د الله تعالى کلام به د پرښتې له واسطې پرته نبي کريم ﷺ ته وحې کيده، لکه څنګه چې الله تعالى د موسى بن عمران (عليه السلام) سره خبرې کړې وې چې دغه وحې د موسى عليه السلام لپاره د قرآن په نص او د پيغمبر ﷺ لپاره د اسراء او معراج په حديث کې ثابته ده.

## جبرائيل عليه السلام دويم ځلې وحې راوړي

وحې څو ورځې ځنډ شوه، نبي کريم ﷺ د وحې د نازليدو په انتظار کې و چې الله تعالى دويم ځلې په وحې مشرف کړ، پيغمبر ﷺ فرمايي: يوه مياشت د حرا په غار کې معتکف شوم، کله چې زما اعتکاف پای ته ورسيد؛ د حرا له غاره راکوز شوم، يو آواز مې واوريد، نو ښي، کيڼ، مخې او شاته مې وکتل، څه مې ونه ليدل، کله چې مې پورته خواته وکتل؛ همغه ملايکه مې وليده چې د حراء په غار کې ماته راغلې وه،

پر هغه کرسۍ چې د آسمان او ځمکې تر منځ یې شتون درلود؛ ناسته وه، نو ډېر زیات وویریدم او د هغې د لیدو له ویرې پر ځمکه پریوتم.

خدیجې ته راغلم او ومې ویل: ماونغاړه! ماونغاړه! هغې زه ونغاړلم، بیا دا آیتونه نازل شول:

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلۡمُدَّثِّرُ ۝ قُمۡ فَأَنذِرۡ ۝ وَرَبَّكَ فَكَبِّرۡ ۝ وَثِيَابَكَ فَطَهِّرۡ ۝ وَٱلرُّجۡزَ فَٱهۡجُرۡ ۝ ﴾[١]

ژباړه: اې ځان نغښتونکیه څملاستونکیه! پاڅېږه او خبرداري ورکړه او د خپل رب لويي اعلان کړه او خپلې جامې پاکې وساته او له چټلۍ څخه په څنګ اوسه.

د دې څخه وروسته پیغمبر ﷺ شل کاله د ارامۍ خوب اوراحت پر ځان او پر خپله کورنۍ بند کړ او د الله ﷻ دین ته د بلنې لپاره یې خپله ملا وتړله، د الهي رسالت د تبلیغ درووند پیټی یې په غاړه واخیست، د ظلم، تیرې او له جهالت سره د کلکې مبارزې درووند بار یې په اوږو کیښود، نو ځکه یې د شلو کلونو څخه زیاته موده په مختلفو برخو کې هلې ځلې او کوښښونه کول او په دې لاره کې یې بې ساري زحمتونه وګالل.

کله یې چې آسماني آواز تر غوږو شو او د دعوت په رسولو مامور شو؛ نو د دنیا هیڅ ډول خنډونو او ستونزو ونشوای کړای د ده د لوړې موخې د لارې خنډ واقع شي.

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییز توګه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱. د وحې ډولونه په لنډه توګه بیان کړئ.

۲. جبرائیل امین د دویم ځل لپاره د څرنګه وحې سره راغلی؟

## کورنۍ دنده

د لوست عمده مطالب په خپل تعبیر سره ولیکئ او یو مناسب عنوان ورته وټاکئ.

---

(١) المدثر: ١ – ٥.





# خدیجه رضي الله عنها

خدیجه رضي الله عنها څوک ده؟ څرنګه یې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم ملاتړ وکړ؟ له پیغمبر صلی الله علیه وسلم سره د هغې نکاح د دعوت په نشراوخپرولو کې څه اغیزه درلوده؟

## خدیجه رضي الله عنها څوک ده؟

خدیجه بنت خویلد بن اسد ده چې د پیغمبر اکرم صلی الله علیه وسلم سره په دریم نیکه کې شریکیږي.
هغه رضي الله عنها د (طاهرې) په نامه هم یادیدله، له عام الفیل څخه پنځلس کاله د مخه زیږیدلی وه. په ټولو ښځوکې د حسب او نسب له مخې کامله او د ښو اخلاقو څښتنه وه، پیغمبر صلی الله علیه وسلم فرمایي:(د جنت په ښځو کې تر ټولو غوره خدیجه بنت خویلد، فاطمه بنت محمد، مریم بنت عمران او آسیه بنت مزاحم د فرعون ښځه ده).
خدیجه رضي الله عنها لومړنۍ ښځه ده چې په نبي کریم صلی الله علیه وسلم یې ایمان راوړی دی.
خدیجه رضي الله عنها د نبي کریم صلی الله علیه وسلم لومړنۍ ښځه وه چې کونډه وه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د واده پر مهال یې عمر (۴۰) کاله و، پیغمبر اکرم صلی الله علیه وسلم (۲۵) کلن و چې له خدیجې رضي الله عنها سره یې واده وکړ. دوی وروسته له واده (۲۵) کاله ګډ ژوند درلود.

## خدیجه د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ملاتړې

کله به چې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په وړاندې ستونزې راتللې؛ ام المؤمنین خدیجه رضي الله عنها به د هغه تر څنګ ولاړه وه، د هغه صلی الله علیه وسلم کړاوونه به یې کمول، هغه ته به یې ارزښتناکې مشورې ورکولې، په خپله پانګه یې له هغه سره همدردي کوله او په خبرو سره یې هغه ته تسلي ورکوله.

## د پیغمبر صلی الله علیه وسلم ماشومان

د پیغمبر صلی الله علیه وسلم ټول ماشومان له خدیجې رضي الله عنها څخه وو، یوازې ابراهیم له ماریې څخه و، هغه ماشومان چې له خدیجې رضي الله عنها څخه وو عبارت دي له: قاسم، عبدالله او څلور لورګانې یې هره یوه زینب، رقیه، ام کلثوم او فاطمه ده.
قاسم او عبدالله په وړکتوب کې وفات شوي دي.

## د خدیجې رضي الله عنها مړینه

له بندیز او محاصرې څخه ډېر وخت نه و تېر شوی چې خدیجې رضي الله عنها د پاک الله د لورې اجل بلونکي ته لبیک وویل او له هجرت څخه درې کاله دمخه وفات شوه، نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هغې په مړینه ډېر سخت غمجن شو، پیغمبر صلی الله علیه وسلم یې قبر ته ښکته

شو او په خپلو مبارکو لاسونو یې په قبر کې کېښوده. خدیجه رضي الله عنها د روژې په لسمه د (٦٥) کلونو په عمر له فاني دنیا سترگې پټې کړې.
دا کال په " عام الحزن " یعنې د غم په کال ونومول شو، ځکه په دې کال کې نبي کریم ﷺ دوه مهم شخصیتونه له لاسه ورکړل چې خدیجه او ابو طالب وو. ځکه چې دا دوه شخصیتونه د همیش لپاره د پیغمبر ﷺ ملاتړي وو، له پیغمبر ﷺ سره یې بې کچې مینه درلوده او پر هغه زیات مهربانه وو. د دوی په مرگ پیغمبر ﷺ یوازې پاتې شو او په کورنۍ کې یې بل مرستندوی او ملاتړی نه درلود. پیغمبر ﷺ د خدیجې رضي الله عنها له وفات څخه وروسته واده وکړ، مگر د خدیجې رضي الله عنها مینه د پیغمبر ﷺ په زړه کې د ژوند تر اخرنیو شیبو پورې ځای نیولای و او تل به یې د هغې یادونه کوله.

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییز توگه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

**امهات المؤمنین**

(امهات المؤمنین) هغه کُنیه ده چې قرآن کریم د نبي کریم ﷺ میرمنې په هغې عزتمنې کړي دي، الله جل جلاله فرمایي:{ وازواجه أمهاتهم } [ الاحزاب: ٦ ].
د دې کُنیې له اطلاق څخه موخه د نبي کریم ﷺ له رحلت وروسته، د دغو بیبیانو سره د نکاح د حرمت اعلان و. دا کنیه د هغې ویاړمنې امتیازي نښې په څیر وه چې دوی ته د احترام، درناوي او د دعوت په لارکې د نه ستړې کېدونکو هلو ځلو لپاره ورکړل شوه.

## ارزونه

١. خدیجه رضي الله عنها څوک وه؟
٢. هغه لاملونه چې له پیغمبر ﷺ سره د خدیجې رضي الله عنها د واده د ترغیب باعث شوی؛ څه و؟ بیان یې کړئ.
٣. خدیجې رضي الله عنها به نبي کریم ﷺ سره همدردي کوله، هغه ته به یې تسلي ورکوله، دا موضوع شرحه کړئ.
٤. له امهات المؤمنین څخه مراد څه دی؟ او دا ځانگړتیا چې الله تعالی هغوی ته وربه برخه کړه، څه مطلب افاده کوي؟

## کورنۍ دنده

د لوست عمده مطالب په خپل تعبیر سره ولیکئ او یو مناسب عنوان ورته وټاکئ.





# پټه بلنه (سرّي دعوت)

پیغمبرﷺ د رسالت په رسولو، د توحید او د یو الله جَلَّ جَلَالُهُ د عبادت په لور د خلکو په رابللو مامور شو، نو رسول اللهﷺ د خپل رسالت تبلیغ څرنګه او له کومه ځایه پیل کړ؟ د خلکو غبرګون د دې نوې بلنې په وړاندې څرنګه و؟

**د پټې بلنې پیل**: د مدثر سورت د څو آیتونو له نازلیدو وروسته نبي کریم ﷺ خپل دعوت او بلنه د یو الله په لوري پیل کړه.

## ولې د دعوت پیل په پټه وشو؟

رسول الله ﷺ په داسې قوم کې ژوند کاوه چې پرته له بت پرستۍ یې بل کوم دین نه درلود، د دوی دلیل د بتانو په عبادت کې دا و چې د دوی پلرونو د بتانو عبادت کاوه.
د ستونزو او شخړو په حل کې یې پرته له توري بله لاره نه پېژندله. له دې سره، سره یې په عربي جزیره کې دیني زعامت او مشري درلوده.
په داسې شرایطو کې د حکمت غوښتنه دا وه چې بلنه باید په پټه مخکې لاړه شي، څو د مکې خلك په یو ځلي او ناڅاپي توګه له یو پارووونکي کار سره مخامخ نشي، نو لدې امله به پیغمبر ﷺ خلك په پټه او سري توګه اسلام ته رابلل.




- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییز توګه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

## بلنه له کوم ځایه شروع شوه؟

رسول اللهﷺ په لومړۍ هغه چاته دعوت وړاندې کولو چې له ده سره ډېر نژدې او د کورنۍ غړي او دوستان به یې وو. رسول اللهﷺ هغه کسان اسلام ته رابلل چې په نیکو صفاتو پېژندل شوي وو، لکه: د حق طرفداران، د خیر او اصلاح خاوندان، ریښتیني او داسې نور.
داسې خلکو به ضرور د پیغمبرﷺ بلنه منله او د پیغمبرﷺ په خبرو به یې باور کاوه،

دوی اسلام او د اسلام پیغمبر ته پوره اخلاص درلود او د ژوند تر آخري سلګۍ پورې له بې ساري قرباني او سربښندنې سره د اسلام په خدمت کې وو.
دوی د اسلام په تاریخ کې د اسلام په لومړیو مخکښانو (السابقون الاولون) وپیژندل شول.
د دې ډلې په سر کې د پیغمبر ﷺ بي بي ام المؤمنین حضرت خدیجه بنت خویلد، ابو بکر صدیق، علي بن ابي طالب او زید بن حارثه (رضی الله عنهم) وو. دا ډله د دعوت په لومړنۍ ورځ په اسلام مشرفه شوه. حضرت ابو بکر صدیق د دعوت په کار کې فعاله ونډه واخیسته او د خپل قوم په منځ کې یې دعوت پیل کړ، خپل ډېر نږدې او د باور وړ کسان یې اسلام ته را وبلل، لکه: عثمان بن عفان، زبیر بن عوام، عبدالرحمن بن عوف، سعد بن ابي وقاص او طلحه بن عبید الله (رضی الله عنهم)، د ابو بکر صدیق په بلنه په اسلام مشرف شول چې دوی هم د اسلام له لومړنیو مخکښانو څخه شمېرل کیږي. له هغه وروسته ابو عبیده، عامر بن جراح، ابو سلمه بن عبدالاسد، ام المؤمنین ام سلمه، ارقم بن ابي ارقم، عثمان بن مظعون، عبدالله بن جحش او ډېر نور په اسلام سر لوړي شول او دا ټول د قریشو له قبیلې څخه وو. له قریشو پرته د اسلام په مخکښانو کې دا کسان وو: عبدالله بن مسعود، مسعود بن ربیعه، بلال بن رباح حبشي، صهیب بن سنان رومي، عمار بن یاسر او د هغه پلار یاسر، مور یې سمیه او عامر بن فهیره (رضی الله عنهم). له یادو شوو ښځو څخه پرته د اسلام په مخکښو ښځو کې ام ایمن، ام الفضل لبابه بنت حارث او اسماء بنت ابي بکر صدیق (رضی الله عنهن) وې.

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییز توګه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱- رسول الله ﷺ پټ دعوت څرنګه پیل کړ او څومره موده یې دوام وکړ؟
۲- داسلام له لومړنیو او مخکښو له جملې څخه د پنځو کسانو نومونه واخلئ.

## کورنۍ دنده

د لوست عمده مطالب په خپل تعبیر سره ولیکئ او یو مناسب عنوان ورته وټاکئ.





# دار الارقم (د رهبرۍ مرکز)

**د پټې بلنې مرکز**: د ارقم (رضی الله عنه) کور د پټې بلنې مرکز و چې مسلمانان به هلته را ټولیدل. هره نوې وحې به یې له پیغمبر ﷺ څخه اوریدله، رسول الله ﷺ به هغو ی ته د قرآن کریم تلاوت کاوه او د الله ﷻ صفات به یې ورته بیانول. احکام، اخلاق او د اسلام د مقدس دین آداب یې هغوی ته ښودل. د هغوی پوښتنې به یې ځوابولې او د خپل نظر لاندې یې د اسلامي لارښوونو سره سم تربیه کول.

په دار الارقم کې به اصحابو د اسلام د اساسي ارزښتونو، لکه: توحید، تقویٰ، صبر، زغم، تېرېدنې، تحمل، ثبات، ورورګلوۍ، صدق، وفاء، امانت، ایثار، یو له بل سره مرستې او یووالي په اړه درسونه زده کول.



## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په ډله ییز توګه د سوال او ځواب په طریقې سره تکرار کړي.

## ولې د ارقم کور؟

د مشرتابه د مرکز لپاره د ارقم د کور په غوره کولو کې ګڼ لاملونه وو چې ځینې یې دا دي:

۱. د ارقم د مسلمانیدو په هکله خلکو معلومات نه درلود. له دې امله د هیچا په خیال کې دا خبره نه تیریده چې محمد ﷺ د خپلو یارانو سره د ارقم په کور کې غونډې جوړوي.

۲. ارقم بن ابي الارقم د مخزوم له قبیلې څخه و او هغه داسې قبیله وه چې د بني هاشمو په وړاندې یې د جګړې او سیالۍ بیرغ پورته کړی و.

۳. ارقم بن ابي الارقم یو شپاړس کلن ځوان و چې په اسلام مشرف شو او د عربو عادت دا و چې دوی به عموما خپلې غونډې د مشرانو په کورونوکې کولې، له همدې کبله هیڅکله

دا تصور او گمان نه کیده چې محمد ﷺ به داسې غونډې د یو ځوان په کور کې و کړي.

## پټې بلنې څو کاله دوام وکړ؟

دې کاله په همدې توګه تیر شول، دعوت په پټه چلیده او دعوت په افرادو پورې منحصر و، د دې مودې په اوږدو کې یوه مؤمنه ډله منځ ته راغله چې یو بل ته یې د ورورۍ لاسونه ورکړل، یو د بل ملاتړ او هلې ځلې یې کولې چې د اسلام پیغام خلکو ته ورسوي.

پیغمبر ﷺ خپل دعوت د خلکو په منځ کې په ښکاره ډول اعلان نه کړ، خو په قریشو کې مشهور شوی و او د اسلام پاک نوم د مکې مکرمې په ګوډ ګوډ کې خپور شوی و. خلکو هر ځای د دې دعوت په هکله خبرې کولې، ځینو خلکو، لکه: ابوجهل او ابو لهب په یو شمیر مؤمنانو ظلم کاوه، خو سره له دې هم مشرکانو دې کار ته ډېره پاملرنه نه کوله، ځکه چې پیغمبر ﷺ لا تردې دمه د اسلام دعوت نه و ښکاره کړی، تر څو وحې نازله شوه او نبي کریم ﷺ یې له باطلو عقیدو سره د مقابلې او د بتانو په رنګولو مکلف کړ.

### ارزونه

۱. ارقم بن ابي ارقم څوک و؟
۲. اصحابو په دار الارقم کې څه زده کول؟
۳. ولې دارالارقم د غونډو لپاره مرکز وټاکل شو؟



### کورنۍ دنده

د لوست مهم ټکي په خپل تعبیر سره ولیکئ او یو مناسب عنوان ورته وټاکئ.





# ایمان او ثبات

**عن سفيان بن عبد الله رضي الله عنه قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُول الله! قُلْ لي في الإسْلام قَولاً لاَ أَسْأَلُ عَنْهُ أَحداً غَيْرَكَ، قَالَ: «قُلْ آمَنْتُ بِالله، ثُمَّ اسْتَقِمْ».** [رواه مسلم]

## د راوي پېژندنه

نوم يې سفيان د پلار نوم يې عبدالله د طائف اوسيدونكى و، د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په موده كې د طائف والي و.

## د كلمو معنا

| | |
|---|---|
| ۱- لاَ أَسْأَلُ: | پوښتنه ونه کړم. |
| ۲- قَولاً: | خبره |
| ۳- قُلْ: | ووايه |
| ٤- ثُمَّ اسْتَقِمْ: | بيا په همدغه مستقيمه لاره ټينګ اوسه. |

## د حديث شريف معنا

له حضرت سفيان بن عبدالله رضي الله عنه څخه روايت دى چې پيغمبر صلی الله علیه وسلم ته مې عرض وكړ: اى د الله پيغمبره! د اسلام په باره كې راته يوه داسې خبره وكړه چې په دې اړه له تا څخه وروسته له بل چا څخه د پوښتنې ضرورت پاتې نشي. نو يې وفرمايل: ووايه په الله ايمان لرم او بيا پرې ټينګ اوسه.

## د حديث شريف حكمت

مؤمن د ايمان له بركته هېڅكله نه پرېشانه كېږي، ځكه چې دى پر هغه پروردګار ايمان او عقيده لري چې د ټولو كايناتو مالك او متصرف دى، هر څه د هغه په لاس كې دي، مؤمن په دې هم پوهېږي چې يوازې ماديات د انسان ټول مشكلات نشي حل كولاى او د ده اړتياوې نه پوره كوي، په همدې اساس د خپل پروردګار په بنده ګۍ او اطاعت كلك ولاړ وي.

په نتيجه كې هغه مؤمن چې د ايمان په غوښتنو ثابت ولاړ وي؛ د ده د ذهن او فكر څخه هر ډول تشويشونه او غمونه لرې كوي. صبر، حوصله او زغم ورېه برخه كوي، ځكه چې د برياليتوب راز يوازې په استقامت كې نغښتى دى.



## فعالیت

- زده کونکي دې په ټولنيز، اقتصادي او امنيتي اړخونو کې په الله تعالی د ايمان مثبتې اغېزې له غير اسلامي ټولنو سره په مقايسه کولو بيان کړي.

**له استقامت څخه هدف**: له استقامت څخه هدف بې له کمي او زياتي څخه د اسلام پر سمې لارې تلل، په پوره ډول د الله جل جلاله له ټولو اوامرو څخه پيروي کول او له نواهيو څخه يې ځان ساتل دي.

د استقامت ګټه: استقامت له مسلمان سره د الله تعالی په بنده ګۍ کې کومک کوي، د شيطاني وسوسو او نفسي خواهشاتو په مقابل کې يې سر لوړی کوي، د هغه د سعيې او کوښښ د ضايع کېدلو مخه نيسي، د دنيا او آخرت د نېکمرغۍ لامل ګرځي.

## د حديث شريف ګټې:

۱. په الله تعالی باندې د ايمان ارزښت: په الله تعالی ايمان درلودل دومره مهم او ارزښتناک کار دی چې پيغمبر ﷺ د سوال په ځواب کې لوی عنوان وټاکه.

۲. د استقامت لزوم: انسان د خپل بریالیتوب لپاره دوو ارزښتناکو قوي قوو ته اړتيا لري چې يوه يې باطني او بله يې خارجي ده، باطني قوه يې په الله تعالی باندې کامل ايمان دی او خارجي قوه يې په ايمان باندې استقامت دی.

۳. د دين زده کړه: د دغه صحابي له پوښتنې څخه معلومېږي چې هر مسلمان بايد د دين د زده کړې لپاره د علم او پوهې له خاوندانو څخه پوښتنې وکړي.



## ارزونه

۱- له ثبات او استقامت څخه مراد څه دی؟

۲- د استقامت ګټې څه دي؟

۳- لاندې کلمې معنا کړئ.

أ- قُلْ آمَنْتُ بِاللهِ:......................        ب- ثُمَّ اسْتَقِمْ:..........................



## کورنۍ دنده

د ايمان د اهميت او پر هغه د استقامت د حتميوالي په باره کې يوه مقاله وليکئ.



# د یتیم پالنه

**عن سَهْلِ بْنَ سَعْدٍ رضي الله عنه عَنْ النَّبِيِّ(صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ)قَالَ: «أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ كَهَاتَيْنِ فِي الْجَنَّةِ وَقَرَنَ بَيْنَ أُصْبُعَيْهِ الْوُسْطَى وَالَّتِي تَلِي الْإِبْهَامَ».** [رواه ابو داود]

## د راوي پېژندنه

نوم یې سهل د پلار نوم یې سعد الساعدي دی، د جاهلیت په زمانه کې یې نوم حزن (غم) و، پیغمبر صلی الله علیه وسلم په سهل (ایماني) باندې ونوماوه په ډېرو غزاګانو کې یې ګډون کړی و او د هجرت په (٨٨) کال د (٩٤) کلونو په عمر وفات شوی دی.

## د کلمو معنا

١- كَافِلُ: پالونکی.
٢- الْيَتِيم: هغه ماشوم چې پلار یا مور او پلار دواړه یې مړه وي.
٣- كَهَاتَيْنِ: لکه دغه دوه (ګوتې).
٤- قَرَنَ بَيْنَ أُصْبُعَيْهِ: دواړه ګوتې یې سره یو ځای کړې.

## د حدیث شریف معنا:

حضرت سهل رضي الله عنه له پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه روایت کوي چې ویې فرمایل: زه او د یتیم پالونکی به په جنت کې یو د بل تر څنګ داسې نېږدې یو لکه د یو لاس دا دوه ګوتې. راوي وایي چې خپله منځنۍ او د شهادت ګوته یې سره نېږدې کړې.



## فعالیت

- زده کوونکي دې یتیم ته د نه پاملرنې زیانونه په ډله ییز ډول بیان کړي.

## د حدیث شریف حکمت

په هره ټولنه کې لکه څرنګه چې پانګوال او سرمایه دار ژوند کوي، فقیران، بې وزله او بې کسه یتیمان هم ژوند کوي. د اسلام مقدس دین موږ دې ته هڅوي چې د هغوی

سرپرستي وکړو او دوی پرې نږدو چې په دغه حالت کې د بېوازې والي احساس وکړي، که چېرې د دوی اړتیاوې او ضرورتونه پوره نه کړل شي؛ نو تجربې دا ثابته کړې ده چې دغسې خلک لوی شي، زړونه یې سخت وي، کینه او خطرناک فکرونه لري او بیا د اسلام دښمنان ورڅخه د خپلو سترو اهدافو ته د رسېدلو لپاره کار اخلي او په ورانکارۍ پیل کوي، د راحت فضا خړه پړه او ژوندون په یو تریخ حقیقت بدلوي، نو په همدې اساس د شتمنو او بډایو خلکو دا وظیفه ده چې د دوی تعلیم او سالم تربیت په خپله غاړه واخلي او خپله دیني وجیبه ترسره کړي او هم د لوی اجر او ثواب خاوندان شي.

## فعالیت

- ځنګه کولای شو له یتیمانو سره مرسته وکړو؟ په دې اړه خپل نظریات په ډله ییز ډول ښرګند کړئ.

### د حدیث شریف ګټې:

۱- د یتیم د پالونکي مقام: پیغمبر ﷺ د یتیم پالونکي ته دا زېری ورکړی دی چې هغه به د قیامت په ورځ د پیغمبر ﷺ ترڅنګ ولاړ وي.

۲- په ښوونه کې له تعلیمي وسایلو څخه استفاده: د دې لپاره چې مطلب د مخاطب په ذهن کې ښه ځای ونیسي پیغمبر ﷺ د خپلو مبارکو ګوتو له اشارو څخه کار واخیست.

## ارزونه

۱- یتیم چا ته ویل کېږي او د هغه پالنه د چا په غاړه ده؟

۲- د یتیم د پالونکي مقام څه دی؟ واضح یې کړئ.

۳- د پورتني حدیث شریف ګټې ذکر کړئ.

## کورنۍ دنده

په دې اړوند چې یتیم دې له کومه حیثه د پاملرنې وړ وګرځي یوه لنډه مقاله ولیکئ.





# مرسته او كومك

عَنْ عَبدِ اللهِ بنِ عُمرَ (رضي الله عنهما) أَنَّ رسولَ اللهِ (صلى الله عليه وسلم) قال: «اَلْمُسْلِمُ أخُو المُسْلِمِ، لا يَظْلِمُهُ، ولا يُسْلِمُهُ، و مَنْ كَانَ فِيْ حَاجَةِ أخِيْهِ، كانَ اللهُ فِيْ حَاجَتِهِ، وَمَنْ فَرَّجَ عَنْ مُسْلِمٍ كُرْبَةً، فَرَّجَ اللهُ عَنْهُ بهَا كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَومِ القِيَامَةِ، وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِماً سَتَرَهُ اللهُ يَوْمَ القِيَامَةِ». [رواه البخاري].

## دراوي پېژندنه

نوم يې عبدالله، د پلار نوم يې عمر او په قوم قريشي دی، په مکه مکرمه کې په اسلام مشرف او بيا يې مدينې منورې ته هجرت وکړ. په صحابه کرامو کې د فقهاوو له جملې څخه و، له نبي کريمﷺ څخه يې زيات شمير احاديث روايت کړي دي او د هجرت په (۷۳) کال وفات شوی دی.

## د کلمو معنا

۱- كُرْبَةً: کړاو اوستونزه.

۲- فَرَّجَ: لیرې يې کړي.

۳- سَتَرَ: عيب يې پټ کړ.

## د حديث شريف معنا

له عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چې پيغمبرﷺ وفرمايل: مسلمان د مسلمان ورور دی، نه تيری وربانديې کوي او نه يې تيري کوونکو ته سپاري. هر څوك چې د خپل ورور اړتيا پوره کړي الله تعالی به د ده اړتيا پوره کړي. هر څوك چې د يو مسلمان

مشکل حل کړي، الله تعالی به یې د قیامت په ورځ مشکلات اسانه کړي. هر چا چې پر یو مسلمان پرده واچوله، الله تعالی به یې د قیامت په ورځ پرده وساتي.




- په پورتني حدیث شریف کې، د مرستې او کومک ښې اغېزې په ډله ییز ډول بیان کړئ.

## د حدیث شریف حکمت

الله تعالی دوه ورونه یا خویندې اویا د یوې کورنۍ غړي فطرتاً داسې پیداکړي دي چې ځانګړې مینه او محبت یې تر منځ وي او د تل لپاره د یو بل د سعادت او هوساینې په فکر کې وي، که اړتیا ورپیښه شي او یا له کومې ستونزې سره مخامخ شي د حل لپاره یې د خپل توان مطابق هلې ځلې کوي، هېڅکله هم پر یو بل تیری نه کوي او نه یو بل غلیم ته سپاري، نو ځکه پیغمبر ﷺ په دې حدیث شریف کې ټول مسلمانان د یوې کورنۍ د غړو او په خپلو کې د خویندو او ورونو په څیر بللي دي او له داسې اعمالو څخه چې دغه اړیکې پرې کوي او له منځه یې وړي، منع کړي دي، لکه: ظلم، تېری او داسې نور.

د یوې دیني دندې په توګه یې د یو بل د غم خوړلو، د ستونزو د حل کولو او د نورو له عیبونو څخه سترګو پټولو ته خپل پیروان را دعوت کړي دي.

## فعالیت

- زده کونکــي دې پــه خپل ګروپ کې د دې لوســت حدیث شــریف په صحیحو الفاظو سره ووایي.

### د حدیث شریف ګټې:

۱- مسلمانان په خپلو کې خویندې او وروڼه دي. باید چې د یوې کورنۍ د غړو په څیر سره ژوند وکړي.

۲- مسلمان پر مسلمان ظلم نه کوي او ظلم کول په هیڅ ډول روا نه دي.

۳- مسلمان خپل مسلمان ورور دښمن ته نه سپاري.

٤- مسلمان د خپل مسلمان ورور د اړتیاوو د پوره کولو په فکر کې وي.

٥- یو مسلمان د بل مسلمان عیب پټوي. بې عیبه انسان نشته ریښتینی مسلمان د خلکو ښه صفتونه بیانوي او بدۍ یې پټوي.

٦- د دې ټولو کارونو په بدله کې الله تعالی له خپل بنده سره همدغه شان مرسته او کومک کوي.

## ارزونه

۱- یو مسلمان د بل مسلمان په باره کې باید څرنګه احساس ولري؟

۲- د څه لپاره د نورو په عیبونو پرده اچوو؟

۳- د لاندې کلمو معنا څه ده؟

الف –لا يَظْلِمُهُ:.........................................................

ب ـ ولا يُسْلِمُهُ:.........................................................

ج ـ فَرَّجَ:.................................................................

د ـ كُرْبَةً:.................................................................

ه ـ سَتَرَ مُسْلِماً:........................................................

و ـ سَتَرَهُ اللهُ:...........................................................



## کورنۍ دنده

څرنگه کولای شو د خپلو ټولگیوالو او گاونډیانو سره مرسته وکړو؟ تر دې عنوان لاندې یوه لنډه مقاله ولیکئ.





# د مسلمان پېژندنه

عن عبدِالله بنِ عَمرو (رضی الله عنه). عن النبي (صلی الله علیه و سلم) قال: «اَلْمُسلِمُ مَن سَلِمَ المُسلِمُونَ مِن لِسَانِه وَیَدِهِ والمُهاجِرُ مَن هَجَرَ مَا نَهَی اللهُ عنه» [رواه البخاري].

## د راوي پېژندنه

دغه راوي په اووه دیرشم لوست کې پېژندل شوی دی.

## د کلمو معنا

| | |
|---|---|
| ۱. مِن لِسَانِه: | د هغه له ژبې. |
| ۲. وَیَدِهِ: | د هغه له لاسه. |
| ۳. المُهاجِرُ: | پرېښودونکی. |
| ٤. مَن هَجَرَ: | چا چې پرې اېښی وي. |
| ٥. مَا نَهَی اللهُ: | هغه څه چې الله تعالی منع کړي دي. |

## د حدیث شریف معنا

له حضرت عبدالله رضي الله عنه څخه روایت دی چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمایل: مسلمان هغه څوک دی چې نور مسلمانان یې د ژبې او لاس له ضرر څخه په امن وي او مهاجر هغه څوک دی چې له ګناهونو څخه ځان ساتي.



فعالیت

زده کوونکي دې په ډله ییزه توګه د ژبې او لاس د ضررونو په هکله خپل معلومات وړاندې کړي.

## د حديث شريف حكمت

انسان ته له دوو لوريو ضرر رسيدلای شي، يو جسمي او فزيكي او بل معنوي او روحي. بناءً په دې حديث شريف كې مسلمانان نورو ته د ژبې او لاس له هر ډول ضرر رسولو څخه منع شوي دي، ترڅو مسلمانان يو بل ته د متقابل احترام په فضا كې د عزت ژوند وكړي او له هر ډول تيري، بهتان، تمسخر او ازار څخه خوندي وي.

## د حديث شريف ګټې:

١- د ژبې سپېڅلتيا: مسلمان په غور او سوچ سره خبرې كوي او له بدو الفاظو او كنځلو څخه ځان ساتي.

٢- د مسلمان له لاسه هېچا ته ضرر نه رسېږي.

٣- د ګناه له مجلسونو څخه لرې والی: مسلمان بايد د ګناهونو له مجلسونو څخه خپل ځان لرې وساتي او په پاك چاپيريال كې ژوند وكړي.

### ارزونه

١- پدې حديث شريف كې له مهاجر څخه څوك مراد دی؟

٢- ولې يوازې د لاس او ژبې په ساتنه ټينګار شوی دی؟



### كورنۍ دنده

پورتنی حديث شريف له معنا سره په خپلو كتابچو كې ولیکئ.





# د اسلام پنځه بناوي

عَنِ ابنِ عُمَرَ (رضي الله عنهما)، قَالَ: قال رَسُول اللهِ (صلی الله علیه وسلم): بُنِيَ الإِسْلامُ عَلَی خَمْسٍ: شَهَادَةِ أَنْ لاَ إِلهَ إِلاَّ اللهُ، وَأَنَّ مُحَمَّداً رَّسُولُ اللهِ، وَإِقَامِ الصَّلاَةِ، وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَصَوْمِ رَمَضَانَ، وَحَجِّ الْبَيْتِ. [رواه البخاري].

## د راوي پيژندنه

دا راوي په اوه دېرشم لوست کې معرفي شوی دی.

## د کلمو معنا

| | |
|---|---|
| ۱ـ بُنِيَ: | بنا شوی دی. |
| ۲ـ خَمس: | پنځه. |
| ۳ـ إِقَامِ الصَّلاَةِ: | د لمانځه اداء کول. |
| ٤- إِيتَاءِ الزَّكَاةِ: | زکات ورکول. |

## د حدیث شریف معنا

حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما وايي: چې پيغمبر صلی الله علیه وسلم وفرمايل: اسلام پر پنځو ستنو ولاړ دی:

۱ـ په دې ګواهي ورکول چې پرته له الله جل جلاله څخه بل معبود نشته (هیڅوك د عبادت او بندګی وړ نه دی) او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله رسول دی.

۲ـ د لمانځه اداء کول.

۳ـ د زکات ورکول.

٤ـ د حج د فريضې اداء کول

۵ ـ د رمضان د مبارکې مياشتې روژه نيول.

## د حديث شريف حکمت

اسلام د سلم (صلح) او سلامتۍ له مادې څخه اخيستل شوی او الله تعالٰی ته د غاړې اېښودلو په معنا دی چې بنده به د الله تعالی ټول امرونه مني او له نواهيو څخه به يې ځان ژغوري. په دې حديث شريف کې د اسلام مقدس دين له داسې تعمير سره تشبيه شوی دی چې په پنځو محکمو ستنو ولاړ دی.

دغه پنځه ستنې دا دي:

**د شهادت د کلمې لوستل**: د اسلام بنسټ د الله تعالٰی په يووالي ايمان لرل دي چې يواځې همدغه ذات د کايناتو پيدا کوونکی او د عبادت او بندګۍ وړ دی او حضرت محمد ﷺ يې بنده او پيغمبر دی او د هغه پېغامونه يې انسانانو ته رسولي او د ژوند کولو او بندګۍ لارې يې ورته ښودلې دي.

**لمونځ**: له کلمې وروسته د اسلام مهم رکن لمونځ دی چې د ورځې پنځه وخته پر هر نارينه او ښځه فرض دی. لمونځ مؤمن ته قوت ورکوي، لکه څنګه چې په قرآن عظيم الشان کې ويل شوي دي: (وَاسْتَعِينُواْ بِالصَّبْرِ وَالصَّلاَةِ) ژباړه: ((اې مؤمنانو! په صبر او لمانځه سره مرسته وغواړئ)) [1] د الله تعالٰی د ياد تر ټولو ستره وسيله لمونځ دی په دې باره کې قرآن عظيم الشان فرمايي: (وَأَقِمِ الصَّلاَةَ لِذِكْرِي) [2] ژباړه: ((زما د ياد لپاره لمونځ وکړه)). لمونځ د مؤمن ژوند منظموي، له فحشا او منکراتو څخه يې منع کوي او زړه ته ډاډ ورکوي.

لمونځ يو ټولنيز عبادت دی خلکو ته د الله تعالٰی د احکامو په وړاندې د ټولو انسانانو د برابرۍ پېغام ورکوي.

**زکات**: زکات بله هغه ستنه ده چې اسلام وربانديې ولاړ او د پاکۍ او ودې په معنا دی. زکات يواځې مالي مرسته نه ده، بلکې د لمانځه، روژې او حج په څېر يو عبادت دی. د زکات په ورکولو مؤمن د خپل رب امر پر ځای کوي او په پای کې يې د ثواب

---

(۱) د البقره سورت، ۱۵۳ آيت.

(۲) طه سورت، ۱٤ آيت.

مستحق گرځي او همدغه ثواب دی چې د انسان اخروي ژوند جوړوي او که په ښه طريقه ورکړل شي د ټولنې د ټولو افرادو د ژوند سطحه لوړوي.

**روژه**: روژه هم د اسلام د بنا په حيث انسانان له گناه څخه ژغوري، انسان ته د صبر، شکر او نظم درس ورکوي، د فقيرانو له حال څخه يې خبروي او د جسم د آرامۍ لامل گرځي.

**حج**: ډېر فردي او ټولنيز حکمتونه لري، د حج په کولو سره د انسان گناه ښښل کېږي او زړه يې پاکېږي، انسان عبادت او بندگۍ ته هڅوي، ايمان قوي کوي، د اسلام تېر برم را يادوي او د اسلام په لار کې د رسول الله ﷺ او يارانو سرښندنې او قهرمانۍ يې را ژوندۍ کوي.

حج په ميليونونو انسانان بې له دې چې د رنگ، ژبې، قوميت، دولت، فرهنگ، مقام او منصب توپير يې په نظر کې ونيول شي؛ د يو گډ هدف او موخې لپاره په يو ځای را ټولوي او دا څرگندوي چې په مسلمانانو کې د ورور گلوۍ او برابرۍ اړيکې څومره کلکې او ښتلې دي، نو دغه دين يواځينی دين دی چې ټول خلک په يوه محور راټولوي او د دنيا او آخرت د نېکبختۍ په لور يې بيايي.

**د حديث شريف گټې:**

١ـ اسلام پر پنځو بناوو ولاړ دی.

٢ـ لمونځ فرض دی.

٣ـ روژه فرض ده.

٤ـ زکات په بډايه او شتمنو مسلمانانو څوک چې د نصاب خاوندان وي؛ فرض دی.

٥ـ حج فرض دی.



## فعالیت

- زده کوونکي دې په ډله ییز ډول د اسلام د ارکانو په باره کې سره خبرې وکړي.



## ارزونه

۱ـ اسلام څو بناوې لري؟

۲ـ د لمانځه د اهمیت او ارزښت په باره کې مو څه زده دي؟

۳ـ د حج ځینې حکمتونه ذکر کړئ.



## کورنۍ دنده

د دې لوست حدیث شریف حفظ کړئ او له معنا سره یې ولیکئ.





# حياء

عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ عُقْبَةَ بْنِ عَمْرٍو (رضى الله عنه) قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ): «إِنَّ مِمَّا أَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ الْأُولَى إِذَا لَمْ تَسْتَحِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ». [رواه البخاري].

## د راوي پېژندنه

نوم يې عقبه، کنيه يې ابو مسعود او په کوفه کې زېږېدلی دی. د هجرت په (٤٠) کال د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت په دور کې وفات شوی دی.

## د کلمو معنا

١- مِمَّا أَدْرَكَ النَّاسُ: هغه څه چې خلکو له مخکينيو څخه زده کړي دي.

٢- مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ الْأُولَى: هغه څه چې د ټولو انبياوو (عليهم السلام) شريعتونو ورباندې اتفاق کړی دی.

٣- إِذَا لَمْ تَسْتَحِ: کله دې چې حيا نه لرله.

٤- فَاصْنَعْ: نو کوه.

## د حديث شريف معنا

له ابو مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی، چې پيغمبر صلی الله عليه وسلم وفرمايل: د تېرو شوو پيغمبرانو له ويناوو څخه چې خلکو زده کړې، يوه دا خبره مهمه ده چې کله دې حياء نه لرله، نو څه چې دې خوښ وي؛ کوه يې.



## فعاليت

- آيا په زده کړه او ښوونه کې حيا کول ښه دي؟

**د حديث شريف حکمت**: حيا د هغه انساني کيفيت نوم دی چې سړی له هرې غير مناسبې خبرې او ناوړه کار څخه کرکجن کوي، انسان بايد د هر چا څخه زيات له

الله تعالی څخه حیاء ولري. کوم شی چې ټولنه فاسدوي، اخلاقي فساد دی او حیا داسې یو نېک صفت دی چې انسان له ټولو بدیو او ناوړو کارونو څخه منع کوي، ځکه خو اسلام حیا د ایمان ارزښتناکه څانګه بللې ده او سپارښتنه یې کړې ده چې مسلمانان دې دغه خوی په ځان کې پیدا کړي، خپله ټولنه دې له بربنډتوب او بې حیایۍ څخه چې د ډول ډول ناروغیو لامل کېږي؛ وساتي او د خلکو د تشویش مخنیوی دې وکړي.

## د حیا ثمره

د حیا پایلې همیشه ګټورې وي، لکه څنګه چې پیغمبر ﷺ فرمایلي دي «**اَلحَیَاءُ لَایَاتِي إلَّابِخَیر**» حیا یواځې خیر او ښېګڼه زېږوي. په بل حدیث شریف کې فرمایي:

((حیا او ایمان تل ملګري وي. کله چې یو له دوی دواړو څخه نه وي؛ بل به یې هم نه وي)).




- زده کوونکي دې د حیا په باره کې سره خبرې وکړي.

## د حدیث شریف ګټې:

۱- حیا د ټولو پیغمبرانو له لارښوونو څخه ده.

۲- د حیا اهمیت: حیا انسان له فحشا، منکراتو او خپل سریو څخه منع کوي.

۳- حیا انسان ته قدر ارزښت او عزت ور په برخه کوي.




۱- حیا تعریف کړئ.

۲- د حیا حکمت بیان کړئ.

۳- انسان تر ټولو زیات باید له چا څخه حیا ولري؟




د حیا د ارزښت او ګټو په هکله یوه لنډه مقاله ولیکئ.





# نېشه يي توکي

عَنْ أُم سَلَمَةَ رضي الله عنها قَالَتْ: (نَهَى رَسُولُ الله ﷺ عَنْ كُلِّ مُسْكِرٍ وَمُفْتِرٍ). [رواه ابو داود]

## د راوي پېژندنه

نوم يې حضرت ام سلمة رضي الله عنها د بنو مغيره قبيلې ته منسوبه ده. له لومړنيو مسلمانانو څخه ده، ام سلمة رضي الله عنها د هغو مهاجرينو له جملې څخه ده چې حبشې او مدينې ته يې هجرت کړی دی. هغه د خپل ميړه ابو سلمة له وفات څخه وروسته د هجرت په څلورم کال د شوال په مياشت کې د پيغمبر ﷺ په نکاح کې راغله او د امهات المؤمنين په صف کې داخله شوه له (۳۰۰) څخه زيات احاديث يې له پيغمبر ﷺ څخه روايت کړي دي او بالاخره د هجرت په دياړلسم کال د (۸٤) کالو په عمر وفات شوه.

## د کلمو معنا

١- مُسْكِرٍ: نېشه کوونکی، د عقل له منځه وړونکی.
٢- مُفْتِرٍ: سستوونکی.

## د حديث شريف معنا

حضرت ام سلمة رضي الله عنها روايت کړی چې پيغمبر ﷺ د هر هغه څه له استعمال څخه منع کړې ده چې نېشه راولي او عقل خرابوي او يا عقل کمزوری کوي.

**د حدیث شریف حکمت**

د اسلام له مهمو هدفونو څخه يو هم د عقل، ځان او مال ساتنه او د الله تعالیٰ له نعمتونو څه دګټې اخیستلو د ښو لارو ښودنه ده، الله تعالیٰ انسان ته د عقل په واسطه له حیواناتو څخه غوره والی ورکړی دی، څرنګه چې انسان د خپل عقل په وسیله ښه له بدو اوګټه له زیان څخه توپیر کولای شي او د خپل عقل په پراختیا کولای شي، د ترقۍ او پرمختګ لارې هوارې کړي.

لدې کبله د اسلام مقدس دین، د عقل د ساتنې لپاره ټول نېشه يي توکي چې په لومړي سر کې يې شراب ځای لري، حرام کړي دي، ځکه چې د دغو توکو استعمال د مختلفو جرمونو، لکه: ځان وژنه، غلا، تېري، بد امنۍ د صحت خرابوالي او داسې نورو لامل ګرځي.

**د حدیث شریف ګټې:**

۱- ټول مستي راوستونکي او سستوونکي، لکه شراب او د نېشه يي توکو مختلف ډولونه حرام دي.

۲- نېشه کوونکي توکي که لږ وي او که ډېر وي؛ حرام دي.

۳- له نېشه يي توکو څخه هر ډول ګټه اخیستل حرام دي.

٤- د اسلام مقدس دین، انسان د ځان او عقل د ساتنې مسؤول ګڼي.

## ارزونه

۱- په اسلام کې د نېشه يي توکو حکم څه دی؟

۲- د شرابو او نېشه يي توکو زیانونه بیان کړئ.

۳- د درس مفهوم په لنډ ډول بیان کړئ.



## کورنۍ دنده

د نېشه يي توکو د زیانونو په اړه یوه مقاله ولیکئ.



# د جماعت لمونځ

## ۱. د جماعت د لمانځه حکم

د جماعت لمونځ مؤکد سنت دی.

## ۲. څوک د امامت حق لري؟

په امامت کې د لومړیتوب حق په ترتیب سره لاندې کسان لري:

۱- لومړی د امامت حقدار هغه څوک دی چې عالم وي، یعنې په شرعي مسایلو او خاصتاً د لمانځه په احکامو پوهېږي.

۲- که چېرې داسې څوک نه وي بیا هغه څوک دی چې د قرآن کریم قاري او یا چې قرآن ښه تلاوت وکړای شي.

۳- که عالم او قاري هم پیدا نه شي بیا به متقي او پرهېزګار سړی مخکې کېږي.

٤- او که په تقوی کې ټول سره یوشان وي بیا به هغه څوک مخکې کېږي چې په عمر کې تر نورو مشر وي.

## ۳- د اقتداء احکام

۱. د فرض کوونکي لمونځ په فرض کوونکي پسې په داسې حالت کې روا دی چې دواړه یو فرض له غاړې څخه ساقطوي، یعنې دواړه د ماسپښین فرض کوي، خو که یو د مازدیګر او بل د ماسپښین لمونځ کوي، بیا یو بل پسې نیت کول صحیح نه دی.

۲. تیمم کوونکی د اودس کوونکي امام کېدی شي.

۳. پښې وینځونکی د مسحې کوونکي مقتدي کېدی شي.

٤. په ناست پسې ولاړ دریدی شي.

۵. څوک چې رکوع او سجده کوي په اشاره کوونکي پسې یې اقتداء صحیح نه ده.

٦. د نفل کوونکي اقتداء په فرض کوونکي پسې صحیح ده.

۷. د غیر معذور لمونځ په معذور پسې روا نه دی.
۸. په جامه پټ سرې د لوڅ سرې مقتدي کېدای نه شي.
۹ . قاري دې په امي پسې اقتدا نه کوي.

**۴. په جماعت سره د فرض لمونځ موندل**

کله چې يو چا پر سنتو، فرضو يا قضايي لمونځ ځانته پيل وکړ، بيا جماعت ودريد، خپل لمونځ دې په ولاړه باندې په سلام گرځولو پرېږدي او په جماعت کې دې شريک شي.

**۵. په يو جومات کې د جماعت د تکرار حکم**

د کلي په جومات کې په يو آذان او اقامت د جماعت تکرار مکروه دی. مخصوصا چې دغه کار د يوې ډلې له خوا هميشه تکرار شي، ځکه دا د تفرقې لامل گرځي.

د کلي جومات: هغه مسجد دی چې امام او مقتديان يې معلوم وي.

**۲. په لاندې ځايونو کې د جماعت تکرارول روا دي**

۱. د لارې په جومات کې.

۲. په هغه جومات کې چې ټاکلی امام او مؤذن ونه لري او هر وخت بېل بېل خلک راځي او لمونځ پکې کوي.

**ارزونه**

ا- د جماعت لمونځ څه حکم لري او په امامت کې د لومړيتوب حق په ترتيب سره بيان کړئ.

ب- د اقتداء ځينې احکام په لنډ ډول بيان کړئ.

ج-په کومو ځايونو کې د جماعت تکرارول روا دي؟



**کورنۍ دنده**

د پورتنيو پوښتنو ځوابونه په خپلو کتابچو کې وليکئ.



درېيم څلوېښتم لوست

# د جُمعې او د اخترونو لمونځونه

**د جمعې لمونځ:**

## ۱. د جُمعې د لمانځه حکم

د جُمعې لمونځ فرض عين دی.

## ۲. د جُمعې لمانځه د وجوب شرطونه

د جمعې د لمانځه د وجوب شرطونه دا دي:

۱. نارينتوب: په ښځو باندې د جُمعې لمونځ فرض نه دی.

۲. مقيم توب: په مسافر باندې د جُمعې لمونځ فرض نه دی.

۳. امنيت: په هغه چا باندې چې امنيت يې تر ګواښ لاندې وي، د جُمعې لمونځ فرض نه دی.

٤. د سترګو روغوالی: په ځای ناست ړوند باندې د جُمعې لمونځ فرض نه دی.

## ۳. د جمعې د لمانځه د صحت شرطونه

۱. د جُمعې لمونځ په ښار يا په هر هغه ځای کې چې امير او قاضي ولري صحيح دی.

۲. د جُمعې لمانځه امام بايد خپله د سيمې واکمن وي او يا خو د هغه استازی وي.

۳. د جُمعې لمونځ به د ماسپښين په وخت کې اداء کېږي، نو له ماسپښين څخه مخکې او وروسته د جمعې لمونځ نه صحيح کېږي.

٤. جومات ته به هر څوک ننوتلای شي او هېڅوک به ترې نه منع کېږي.

۵. په جماعت به ادا کېږي او پرته له جماعت څخه يوازې نه کېږي او د جماعت کمه اندازه درې تنه دي او د دوی لپاره خطبې ته حاضريدل شرط نه دي. ځينې وايي که درې تنه د امام په شمول حاضر شي د جُمعې لمونځ ورسره کېږي.

٦. خُطبه له عربي څخه پرته په بله ژبه هم جواز لري.

۷. بايد خطبه د لمانځه څخه مخکې ووايي.

### فعالیت

- یو زده کوونکی دې، عملاً د جُمعې لمونځ  د خپلو ملگرو په وړاندې په لنډه توگه تمثیل کړي.

## د اخترونو لمونځونه

### د اخترونو د لمانځه حکم

په ټولو هغو خلکو چې د جُمعې لمونځ پرې فرض دی، د اختر لمونځ وربانديې واجب دی.

### د اخترونو د لمانځه د وجوب شرطونه

د اخترونو د لمانځه د وجوب شرطونه، کټ مټ د جُمعې د لمانځه د وجوب شرطونه دي.

### د اخترونو د لمانځه د صحت شرطونه

د اخترونو د لمانځه د صحت شرطونه، کټ مټ د جُمعې د لمانځه د صحت شرطونه دي، خو د جُمعې په خلاف د اخترونو په لمانځه کې خطبه له لمانځه څخه وروسته سنت ده.

### ۴. د اخترونو د لمانځه لپاره سنتونه

۱. په اخترونو کې غسل سنت دی د ټولو مسلمانانو لپاره که لمانځه ته ځي او یا نه ځي.

۲. خوشبویي لگول، غوره او پاکې جامې اغوستل،

۳. له چا سره د مبارکۍ په وخت کې ځان خوشحاله ښودل،

٤. د اخترونو په ورځ زیات خیرات او صدقه کول، همدا راز د سرسایې ورکول پر چا چې واجب وي.

۵. د لارې بدلول، یعنې تگ په یوه لار او راتگ په بله لار،

٦. د اخترونو له لمانځه څخه مخکې او وروسته نفل نه کول.

### ۵. د اخترونو د لمانځه ادا کولو کیفیت

۱. امام او مقتدي به په شریکه د اختر د لمانځه نیت په ژبه باندې په داسې حال کې کوي چې امام به د امامت او مقتدي به د اقتداء لفظ ورسره زیاتوي.

۲. امام او مقتدي دواړه به ثناء (سبحانك اللهم....) په پټه وايي.
۳. له ثناء څخه وروسته به امام او مقتدي درې تکبيره په داسې حال کې وايي چې لاسونه به تر غوږو پورې پورته کوي او ترمنځ به يې لږ چوپ پاتې کېږي.
٤. بيا به امام (اعوذ بالله او بسم الله) په پټه او ورپسې فاتحه د سورت په ملتيا په جهر وايي.
٥. بيا به رکوع ته د ښکته کېدو تکبير وايي او رکوع به کوي.
٦. له قومې او سجدو څخه وروسته به دوهم رکعت ته د پورته کېدو لپاره تکبير وايي.
۷. کله چې دوهم رکعت ته پورته شو (بسم الله الرحمن الرحيم) به په پټه وايي.
۸. له (بسم الله) څخه وروسته به فاتحه له سورت سره يوځای وايي.
۹. له سورت څخه وروسته او له رکوع څخه وړاندې به بيا درې تکبيره په داسې حال کې وايي چې لاسونه به غوږونو ته پورته کوي.
۱۰. بيا به وروسته په څلورم تکبير رکوع ته ښکته کېږي. رکوع او سجده به کوي.
۱۱. له تشهد، درود او دعاء څخه وروسته به سلام اړوي.
۱۲. له سلام څخه وروسته به امام پورته کېږي او دوه خطبې به وايي، که چېرې کوچنی اختر وي په لومړۍ خطبه کې به د سرسايې او که لوی اختر وي د قربانۍ او د تشريق د تکبيراتو احکام بيانوي.
۱۳. د دواړو خطبو ترمنځ به لږ ساعت کښېني او بيا به دويمې خطبې ته پورته کېږي.

### ۶. د تشريق تکبيرونه

**اَللّٰهُ اَكْبَرُ– اَللّٰهُ اَكْبَرُ لَا إله إلاالله و اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَللّٰهُ اَكْبَرُ و لِلّٰهِ الْحَمْدُ.**

### ۷. د تشريق د تکبيرونو حکم

د تشريق تکبيرونه په هر بالغ مسلمان واجب دي.

### ۸. د تشريق د تکبيرونو وخت

د عرفې د سهار له لمانځه څخه وروسته پيل او د تشريق د ورځو په اخري مازديگر پای ته رسېږي (د اختر په څلورمه ورځ د مازديگر له لمانځه وروسته د تکبيرونو په

ويلو سره پای مومي).

## فعاليت

- له شاګردانو څخه دې يو کس د اختر لمونځ په عملي بڼه تمثيل کړي.

## ارزونه

۱- لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايئ:

أ- د تشريق ورځې څو دي په لنډ ډول يې بيان کړئ؟

ب- د جمعې او اخترونو لمونځونه څه حکم لري؟

ج- د جمعې د لمانځه د صحت او و جوب شرطونه څو او کوم دي؟

د- د اختر د لمانځه له پاره د لمونځ کوونکي سنتونه په لنډ ډول بيان کړئ؟

۲- لاندې صحيحو جملو ته (ص) او غلطو جملو ته (غ) نښه کېږدئ:

أ- د تشريق تکبيرونه په هر بالغ او نابالغ مسلمان واجب دي. ( )

ب- د اختر د لمانځه د صحت شرطونه کټ مټ د جمعې د لمانځه د صحت شرطونه دي. ( )

ج- د تشريق تکبيرونه د عرفې د سهار له لمانځه څخه وروسته پيل او د ذی الحجې په ديارلسم پای مومي. ( )

## کورنۍ دنده

- د اختر د لمانځه د اداء کولو طريقه په ترتيب سره په خپلو کتابچو کې وليکئ.





# د کسوف، خسوف او استسقا لمونځونه




کسوف (د لمر تیاره کېدل)

## د کسوف لمونځ

### ۱. د کسوف معنا

(کسوف) د لمر توروالي او یا یې د روښنايۍ کموالي ته وايي.
کله چې سپوږمۍ د ځمکې او لمر ترمنځ واقع شي او د لمر د وړانګو مخه ونیسي، نو کسوف (یا د لمر تیاره کېدل) منځ ته راځي.

### د کسوف د لمانځه حکم

د کسوف لمونځ مؤکد سنت دی.

### د کسوف د لمانځه کیفیت

د کسوف لمونځ دوه رکعته دی، په داسې شکل به کېږي لکه څنګه چې نور لمونځونه کېږي. خطبه، اذان او اقامت نه لري. امام به پکې په پټه قرائت لولي او د هغه چا په امامت به ادا کېږي چې کوم د جُمعې امامت کوي، خو که چېرې څوك امامت ته حاضر نه شو؛ بیا به هر سړی په خپل کور کې ځانته دوه یا څلور رکعته لمونځ کوي.

## د خسوف لمونځ

د خسوف معنا: د سپوږمۍ د سترګې توروالي او یا یې د روښنايۍ کموالي ته خسوف وايي. کله چې ځمکه د سپوږمۍ او لمر ترمنځ راشي او د ځمکې سیوری د سپوږمۍ پر مخ ولوېږي او د لمر د هغو وړانګو چې په سپوږمۍ به لویدلې ممانعت وشي نو خسوف (یا د سپوږمۍ تیاره کېدل) منځ ته راځي.

### د خسوف د لمانځه کیفیت

د خسوف لمونځ د تل لپاره کور کې کېږي. همدا راز لمونځونه د زلزلو او د ساري ناروغیو څخه د خلاصون په موخه هم کېږي.

### ۲. د استسقا لمونځ

استسقاء باران غوښتلو ته وايي. په استسقاء کې دوه رکعته لمونځ کېږي، بیا امام خطبه وايي او دعا کوي.

- **مسایل**:

۱. د استسقاء په لمانځه کې لازمه ده چې الله تعالی ته د خشوع، عذر او زاریو اظهار وشي او حتی خاروي هم له ځان سره صحرا ته یوړل شي.

۲. د ماشومانو او سپین ږیرو ویستل د استسقاء د لمانځه لپاره هم په کار دي، ځکه چې د الله جل جلاله رحمت په داسې ضعیفو رانازلېږي.

۳. د استسقاء په لمانځه کې به امام ډېر استغفار وايي.

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په انفرادي او یا ګروپي شکل د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱- لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

أ- خسوف او کسوف څه معنا لري؟ تعریف یې کړئ.

ب- د خسوف لمونځ په کوم ځای کې کېږي؟ او پرته له خسوفه دا لمونځ په نورو کومو ځایونو کې کېږي روښانه یې کړئ؟

ج- استسقاء څه معنا لري لغوي او اصطلاحي تعریف یې وکړئ؟

د- د استسقاء د لمانځه حکم ووایاست.

۲-لاندې صحیحو جملوته (ص) او غلطو جملو ته (غ) نښه کېږدئ:

أ- د کسوف او استسقاء لمونځونه مؤکد سنت دي. (    )

ب-د کسوف د لمانځه امام به د جمعې امام وي. (    )

## کورنۍ دنده

د پورتنیو سوالونو ځوابونه په خپلو کتابچو کې په ساده ژبه ولیکئ.





# د جنازې احکام

## د جنازې تعریف

کله چې مړی ښخولو ته برابر شي او د لمانځه او دفن لپاره وړل کېږي؛ نو دې ته جنازه وايي.

## د ځنکدن د وخت آداب او سنتونه

د ځنکدن په حالت کې لاندې شيان سنت دي:

۱ـ د ځنکدن په وخت کې د شهادت کلمه ویل.

۲ـ د ناروغ د څو تنوخپلوانو اويا دوستانو حاضریدل د ناروغ د ځنکدن په وخت کې مستحب دي، په دې خاطر چې که څه وصیت کوي، نو هغوی دې واوري او د شهادت کلمه ورته ورياده او تلقين کړي (البته ناروغ باندې بايد امر ونه شي چې کلمه ووایه ځکه چې ناروغ په ځان نه پوهیږي اوکیدای شي منفي عکس العمل وښيي)

۳ـ کله چې روح له بدن څخه جدا شي، نو بیا لازمه ده چې د مړي بدن په داسې توګه لکه چې ویده وي، په ښکلي هيئت سره برابر شي، سترګې يې پټې، زنه يې راټوله، پښې او دواړه لاسونه يې اوار کړل شي او که کوم څادر وي؛ نو هغه دې پرې واچول شي.

## ۳. د میت حقوق

هغه معلوم قرضونه چې پر میت باندې دي، د هغو خلاصول او يا يې پر غاړه اخيستل،

۱ـ غسل ورکول،

۲ـ د جنازې لمونځ وربانديې اداء کول،

۳ـ په هدیره کې ښخول.

## د حقیقي شهید احکام

۱ـ خپلې جامې يې کفن دی او بل نوی کفن ورته نه ورکول کېږي.

۲ـ هر هغه شی به ترې لرې کوي چې له کفن څخه زيات وي، لکه: چپن، ساعت او داسې نور...

۳ـ غسل ورته نه ورکول کېږي.

۴ـ د جنازې لمونځ به وربانديې کوي.

## د متوفیٰ ماشوم حق

۱ـ د نوم ایښودل.

۲ـ غسل ورکول.

۳ـ د جنازې لمونځ وربانديې کول.

۴ـ په هديره کې خښول.

## د ميت د تکفين او تجهيز مصارف

د ميت د تجهيز، تکفين او ښخولو مصارف به د ميت له خپل مال څخه ورکول کېږي. که چېرې کوم ميت خپل مال ونه لري بيا به يې هغه خپلوان مصارف ګالي چې په کومو باندې يې نفقه واجبه ده او يا د ده نه ميراث وړي. خو که څوک داسې خپلوان هم ونه لري بيا به له بيت المال څخه دا مصارف ورکول کېږي. البته لازمه ده له هغو اضافي او ملاماتوونکو مصارفوڅخه چې يواځې د تظاهر، ريا او د سيالۍ لپاره کېږي ډډه وشي، ځکه ډېر کله داسې کېږي چې د متوفی د کورنۍ د دوه چنده اذيت او تکليف لامل ګرځي. [۱]

### فعاليت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په انفرادي او يا ګروپي شکل د سوال او ځواب په ميتود سره تکرار کړي.

### ارزونه

لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايئ:

۱. جنازه څه ته وايي؟

۲. د ځنکدن آداب او سنتونه کوم دي؟

۳. د ميت حقونه کوم دي؟ په لنډ ډول يې بيان کړئ.

٤. د حقيقي شهيد احکام په لنډ ډول وليکئ.

٥. د ميت د تجهيز او تکفين مصارف له کوم ځای څخه ورکول کېږي؟

### کورنۍ دنده

د پورتنيو سوالونو ځوابونه په خپلو کتابچو کې وليکئ.

---

(۱) پورتني معلومات اضافي دي او په امتحان کې شامل نه دي.





# د میت لمبول او وربانديې د جنازې لمونځ کول

**لومړی: د مړي د لمبولو طریقه:**

۱. په یو مناسب او مستورځای کې په جامې ترې نه وکاږي او عورت به یې پټ کړي.

۲. د مړي حرمت دې وساتل شي او د عورت ځایونه دې په داسې شکل پرېمنځل شي چې غسل ورکوونکی دې په خپلو لاسونو کې څه ونیسي تر څو لاسونه یې د مړي پر بدن ونه لګېږي او نه ولیدل شي.

۳. اودس دې ورکړل شي، خو خوله او پوزه دې ورته نه پرېمینځي، بلکې خوله او پوزه به یې په یوه لمده ټوټه مسح کړي.

٤. بیا دې سر ورته پریمنځي.

٥. بیا دې په ټول بدن باندې اوبه ورواچوي، که صابون پرې ووهل شي بهتره ده.

٦. بیا دې ښي اړخ ورته پریمنځي او بیا دې چپ اړخ ورته پریمنځي ترڅو چې ټول بدن یې ومینځل شي.

## څوک د میت د لمبولو لپاره مناسب او غوره دي؟

دا بهتره ده چې میت د ده نږدې خپلوان کوم چې په لمبولو پوهېږي ولمبوي، خو که داسې نه وي، نو بیا دې داسې پرهیزګاره سړی ورته غسل ورکړي چې په لمبولو پوهېږي.

البته مړه ښځه به ښځه لمبوي، خو ښځه کولای شي خپل مېړه ومینځي.

## ۲ـ میت ته کفن ورکول

* **د کفن ورکولو حکم:** مړي ته کفن ورکول فرض کفایي دي.

### * د کفن ډولونه:

کفن په درې ډوله دی: مسنونه کفن، کفایي او د ضرورت کفن.

**مسنونه کفن**: په لاندې ډول دی:

قمیص: له ورمیږ څخه ترقدمونو پورې دمړي ټول ځان وربانديې پټېږي.

ازار: د مړي سر او ټول بدن پټوي د قمیص له پاسه وراغوستل کېږي.

لفافه: دا هم له سر څخه تر قدمونو پورې ده، خو له ازار څخه یې اندازه زیاته ده او له سر او پښو سره تړل کېږي.

البته د ښځې په کفن کې دوه ټوټې نورې هم اضافه کېږي: (خمار او خرقه)

خمار: ټکری د سر او د مخ لپاره

خرقه: یوه ټوټه د صدر (سینې) نه تر زنګونونو پورې

خمار او خرقه له لفافې نه مخکې وراغوستل کېږي.

**کفن الکفایة**: عبارت له ازار او لفافې څخه دی او قمیص پکې نشته، خو ښځې لپاره به یو څادر (ټیکری) زیاتېږي.

**کفن الضرورة**: هغه ټوټه چې د کفن د کفایت له اندازې څخه کمه وي او میت د ضرورت لپاره پکې تکفین شي. (۱)

## په مړي باندې د جنازې لمونځ

**۱ـ د جنازې د لمانځه حکم**: دجنازې لمونځ، لکه: د مړي تجهیز، تکفین اوخښول په مسلمانانو باندې فرض کفایي دی.

**۲ـ د جنازې د لمانځه ارکان**: د جنازې لمونځ دوه رکنه لري:

۱. څلور تکبیره،

۲. ودریدل.

- نیت یعني قصد او اراده د جنازې د لمانځه لپاره شرط دی.
- له څلورم تکبیر څخه وروسته دواړو لوروته سلام ګرځول واجب دي.

(۱) د دې درس پورتنۍ برخه اضافي معلومات دي او په امتحان کې شامل نه دي

## د جنازې د لمانځه سنتونه

۱ـ له لومړي تکبير نه وروسته د حمد او ثنا ويل: (سُبحَانَكَ اللَّهُمَّ وَ بِحَمدِكَ وَ تَبَارَكَ اسمُكَ وَ تَعَالَى جَدُّكَ وَ جَلَّ ثَنَائُكَ وَ لَا إِلَهَ غَيرُكَ).

۲ـ له دويم تکبير نه وروسته د درود ويل: (اَللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحُمَّدٍ كَمَا صَلَّيتَ وَ سَلَّمتَ وَ بَارَكتَ وَ رَحِمتَ عَلَى اِبرَاهِيمَ وَ عَلَى آلِ اِبرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ).

۳ـ له دريم تکبير څخه وروسته، مړي ته دعا کول او هغه ته مغفرت غوښتل، په هر عبارت چې وي، خو بهتره دا ده چې په مأثوره الفاظو باندې دعا وشي، لکه:

- د بالغ مړي لپاره نارينه وي او که ښځينه: (اَللَّهُمَّ اغفِر لِحَيِّنَا وَ مَيِّتِنَا وَشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَ صَغِيرِنَا وَ كَبِيرِنَا وَ ذَكَرِنَا وَ أُنثَانَا، اَللَّهَمَّ مَن احيَيْتَه مِنَّا فَاَحيِيهِ عَلَى الاسلام و مَن تَوَفَّيتَهُ مِنَّا فَتَوَفَّهُ عَلَىَ الايمَانِ).
- او که مړی ماشوم وي؛ نو دا دعا به لولي: (اَللَّهُمَّ اجعَلهُ لَنَا فَرَطاً وَ اجعَلهُ لَنَا أَجراً وَ ذُخراً وَ اجعَلهُ لَنَا شَافِعاً وَ مُشَفَعاً).
- او که مړی ماشومه وي؛ نو دا دعا به لولي: (اَللَّهُمَّ اجعَلهَا لَنَا فَرَطاً وَ اجعَلهَا لَنَا أَجراً وَ ذُخراً وَ اجعَلهَا لَنَا شَافِعةً وَ مُشَفَعةً).

## د جنازې د لمانځه ادا کولو طريقه

پس له دې چې جنازه د لمانځه لپاره کېښودل شوه، امام د مړي د سينې په مقابل کې درېږي او د صفونو له ترتيبولو او د ميت له تعيينولو (چې ماشوم دی او که لوی) وروسته لومړی تکبير وايي.

له لومړي تکبير سره د جنازې لمونځ کوونکي لاسونه تر غوږو پورته کوي، تکبير وايي او بيا (سُبحَانَكَ اَللَّهُمَّ....) وايي.

بيا امام دويم تکبير وايي او وروسته (اَللَّهُمَّ صَلِّ...) وايي.

بیا دریم تکبیر وایي او وروسته دعا کوي، څنګه چې مخکې په تفصیل سره بیان شوې، لکه: (اَللّٰهُمَّ اغفِر لِحَیِّنَا وَ مَیِّتِنَا...)

له دعا څخه وروسته به څلورم تکبیر وایي او وروسته به سم د لاس ښي او کیڼ لورته سلام اړوي.




- یو زده کوونکی دې د خپلو ټولګیوالو په وړاندې عملاً د لویانو د جنازې لمونځ په جهر سره تمثیل کړي.

بل زده کوونکی دې د ماشوم د جنازې لمونځ په جهر سره تمثیل کړي.

او بل زده کوونکی دې د ماشومې د جنازې لمونځ په جهر سره تمثیل کړي.




لاندې پوښتنو ته ځوابونه وواياست:

۱. د جنازې د لمانځه دعاګانې ووایئ.

۲. کفن په څو ډوله دی؟

۳. د نارینه او ښځینه کفن څه توپیر لري؟




زده کوونکي دې د جنازې لمونځ په یادو زده کړي او د جنازې کیفیت دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.



# زکات

## د زکات تعریف

زکات په لغت کې: پاکوالي، زیاتوالي او برکت ته وايي.

په اصطلاح کې: مستحقینو ته د هغه مال د ټاکلې برخې ورکول دي چې نصاب ته رسیدلی وي.

## د زکات حکم

زکات د اسلام له ارکانو څخه یو رکن دی او ورکول یې په هغه چا فرض دی چې د ورکولو شرطونه په کې وي.

## د زکات د فرضیت دلایل

زکات په قرآن کریم، احادیثو او اجماع باندې ثابت دی:

۱. قرآن کریم: (وَأَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَآتُوا الزَّكَاةَ)[۱]

ژباړه: تاسې لمونځونه قایم کړئ او زکات ورکړئ.

۲. حدیث: رسول اکرم ﷺ فرمايي: اسلام پنځه بناوې لري لومړۍ بنا يې د شهادت کلمه، دویمه بنا يې لمونځ، دریمه بنا يې زکات ورکول، څلورمه بنا يې د روژې نیول او پنځمه بنا يې د حج کول دي.

۳. اجماع: د ټول امت علماوو اجماع کړې چې زکات د اسلام له ارکانو څخه یو رکن دی.

د زکات د فرضیت کال: زکات د هجرت په دویم کال د روژې له فرضیت څخه مخکې فرض شوی دی.

---

۱ (د البقرې سورت، ۴۳ آیت)

## د زکات د وجوب شرطونه

زکات ځانګړي شرطونه لري چې ځينې په مالك او نور يې په مال پورې اړه لري:

### لومړی د مكلف يا مالک شرطونه:

۱. اسلام.

۲. عقل.

۳. بلوغ.

٤. اصيلوالی. يعني (مريي) نه وي.

۵. د نصاب مالك کيدل چې د کال په پيل او پای کې د نصاب خاوند وي.

د زکات نصاب په نقدينو کې دوه سوه درهمه سپين زر او يا شل مثقاله سره زر دي. چې په اوسنيو ګرامونو باندې د سرو زرو نصاب ۸۵ ګرامه او د سپينو زرو نصاب ۵۹۵ ګرامه کېږي[۲]

### دويم: په مال پورې تړلي شرطونه

۱. مال بايد د مالك په لاس کې وي، نو په ورک شوي مال باندې زکات نشته.

۲. د مال په خاوند باندې داسې پور نه وي چې ټول مال ورلاندې شي او يا دومره ترې پاتې شي چې نصاب نه کم وي.

۳. نصاب بايد د اصلي حاجتونو څخه اضافه وي، لکه: کور، دکور اسباب او داسې نور.

٤. نصاب بايد له هغو مالونو څخه پوره شوی وي چې شرعا د زکات قابليت لري.

۵. يو کال بايد پرې تير شوی وي، يعنې پس له دې چې نصاب ته رسيدلای وي له مالك سره يو کال پرې تير شوی وی.

(خو د فصلونو او مېوو په زکات کې د کال تېرېدل شرط نه دی، بلکې د فصل او مېوې د راټولېدو سره سم پکې زکات واجبېږي).

---

(۲) المكيال و الميزان فتاوىٰ الازهرالشريف ۲۰۲/۱

## ۵. د زکات د صحت شرطونه

فقهاوو کرامو د زکات د صحت لپاره لاندې شرطونه ښودلي دي:

۱. نیت، ځکه چې زکات ورکول عبادت دی او پرته له نیت څخه عبادت نه صحیح کیږي.

۲. اسلام، ځکه چې له کافر څخه د نیت تصور نه شو کولی.

۳. زکات به مستحق کس ته ورکول کیږي، د مستحقینو بیان وروسته راځي.

٤. د مستحق له لوري د زکات قبضول.

۵. زکات له حلال مال څخه ورکول.

## ٦. هغه مالونه چې زکات ورکول پکې واجبیږي

۱. څاروي.

۲. تجارتي توکي.

۳. مېوې او فصلونه.

٤. سره او سپین زر.

۵. معدنونه او ښخ شوي مالونه.

### فعالیت

• زده کوونکي دې پورتني مطالب په انفرادي او یا ګروپي شکل د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

### ارزونه

• لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. زکات په لغت او اصطلاح کې تعریف کړئ.

۲. د زکات د فرضیت دلیل له قرآن کریم څخه ووایاست.

۳. د زکات د صحت شرطونه په لنډ ډول بیان کړئ.

٤. د مال د خاوند شرطونه په لنډ ډول ولیکئ.

- لاندې خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

۱. هغه مالونه چې زکات پکې واجبېږي عبارت دي له..............................

۲. په د مال پورې تړلي شرطونه عبارت دی له..................................

- لاندې صحیح جملو ته (ص) او غلطو جملو ته (غ) نښه کېږدئ:

أ- د زکات د وجوب شرطونه اسلام، عقل او بلوغ دي. (    )

ب- د فصلونو او مېوو په زکات کې هم د کال تېرېدل شرط دی. (    )



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د لوست مهم مطالب په خپلو کتابچو کې ولیکي.



# د څارويو زکات

له څارويو څخه زموږ مطلب اوښه، اوښ، غوا، غوايان، مېښې، سنډاګان، پسونه، مېږې، وز او وزې دي، بناءً په وحشي څارويو کې زکات نشته.

## ۱. د اوښانو زکات

د اوښانو د زکات ترتيب په لاندې ډول دی:

- په پنځو اوښانو کې يو پسه دی.
- په لسو اوښانو کې دوه پسونه دي.
- په پنځلس اوښانو کې درې پسونه دي.
- له شلو اوښانو څخه تر څلور ويشتو پورې، پکې څلور پسونه دي.
- له ۲۵ اوښانو څخه تر ۳۵ اوښانو پورې، يوه کلنه جونګۍ ده، هغه چې په دويم کال کې يې قدم ايښی وي.
- له ۳۶ څخه تر ۴۵ اوښانو پورې، پکې يوه دوه کلنه جونګۍ چې دريم کال کې يې قدم ايښی وي.
- له ٤٦ څخه تر ٦٠ اوښانو پورې، پکې يوه حقه ده يعنی درې کلنه جونګۍ چې څلورم کال کې يې قدم ايښی وي.
- له ٦١ څخه تر ٧٥ اوښانو پورې، جذعه ده څلور کلنه جونګۍ چې په پنځم کال کې يې قدم ايښی وي.
- له ٧٦ څخه تر ٩٠ اوښانو پورې، دوه يو کلنې جونګۍ چې دويم کال کې يې قدم ايښی وي واجبېږي.
- له ٩١ څخه تر ١٢٠ اوښانو پورې، دوه درې کلنې جونګۍ چې څلورم کال کې يې قدم ايښی وي واجبېږي.

| د اوښانو تعداد | د زکات مقدار | د اوښانو تعداد | د زکات مقدار |
|---|---|---|---|
| ۵ اوښانو کې | ۱ پسه | ۳۶ اوښانو کې | ۱ دوه کلنه جونګی |
| ۱۰ اوښانو کې | ۲ پسونه | ٤٦ اوښانو کې | ۱ درې کلنه جونګی |
| ۱۵ اوښانو کې | ۳ پسونه | ٦۱ اوښانو کې | ۱ څلورکلنه اوښه چې په پنځم کال یې قدم ایښی وي |
| ۲۰ اوښانو کې | ۴ پسونه | ۷٦ اوښانو کې | ۲ یو کلنې جونګی |
| ۲۵ اوښانو کې | ۱ یوه کلنه جونګی | ۹۱ اوښانو کې | ۲ درې کلنې جونګی |




- زده کوونکي دې پورتني مطالب په انفرادي او یا ګروپي شکل د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

## ۲. د غواګانو او غوایانو زکات

د غواګانو او غوایانو نصاب دېرش غواګانې او غوایان دي.

د غوایانو او غواګانو د زکات اندازه:

✓ کله چې د غواګانو یا غوایانو شمېر دېرشو ته ورسېږي په هغو کې یوه کلنه خوسی چې په دویم کال کې یې قدم ایښي وي واجبېږي.

✓ کله چې یې شمېر څلوېښتو ته ورسېږي بیا پکې یوه دوه کلنه خوسی چې دریم کال کې یې قدم ایښی وي، واجبېږي.

✓ کله چې د غواګانو او یا غوایانو شمېر شپیتو ته ورسېږي بیا پکې دوه یو کلنې خوسکی چې په دویم کال کې یې پښه ایښی وي، واجبېږي.

✓ کله چې یې شمېر اویاوو ته ورسېږي بیا په کې یوه یوکلنه او بله دوه کلنه خوسی ورکول کېږي.

✓ کله چې د غوایانو او غواګانو شمېر اتیاوته ورسېږي بیا په کې دوه دوه کلنې خوسکی ورکول کېږي.

د میښو او سنډاګانو زکات د غواګانو او غوایانو د زکات په شان دی.




• د غواګانو د زکات د اندازې لپاره یو جدول جوړ کړئ لکه څنګه چې اوښانو ته جوړ شوی دی.

## ۳. د میږو او وزو زکات

د میږو او وزو د زکات نصاب: د میږو، پسونو او وزو د زکات نصاب څلویښت مېږې یا وزې دي بناءً په نهه دېرشو پسونو او وزو کې زکات نشته.

د میږو او وزو د زکات اندازه:

۱ـ کله چې د میږو یا وزو شمېر څلویښتو ته ورسېږي یو پسه به په زکات کې ورکوي.

۲ـ کله چې د میږو یا وزو شمېر ۱۲۱ ته ورسېږي بیا به دوه پسونه په زکات کې ورکوي.

۳ـ کله چې یې شمېر ۲۰۱ ته ورسېږي درې پسونه به زکات کې ورکوي.

۴ـ کله چې څلورسوو ته ورسیږي څلور پسونه به زکات کې ورکوي کله چې له څلوروسوو څخه د میږو او وزو شمېر زیات شي بیا په هرو سلو کې یو پسه یا وزه د زکات لپاره وباسي.

**مسأله**: د میږو او وزو په زکات کې به یو کلن مال چې په دویم کال کې یې قدم ایښی وي ورکوي یعني له کال نه د لږ عمر مال په زکات کې نه ورکول کېږي.

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په انفرادي او یا ګروپي شکل د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

## ارزونه

- لاندې صحیح جملو ته (✓) او غلطو ته د (×) نښه کېږدئ:

۱. په هرو پنځو اوښانو کې څلور پسونه لازمېږي. (      )

۲. کله چې د غواګانو شمېر شپېتو ته ورسېږي دوه یو کلنې خوسۍ به زکات کې ورکوي. (      )

۳. د میږو نصاب څلوېښت میږې دي او له دې څخه په کمو کې زکات نشته. (      )

٤. د غواګانو نصاب څلوېښت غواګانې دي. (      )

## کورنۍ دنده

د زکات د ګټې په اړه یو مطلب چې پنځه کرښې وې ولیکئ.





# د فصلونو او مېوو زکات

د میوو او فصلونو زکات ته (عشر) ویل کېږي.

## د میوو او فصلونو د زکات د وجوب دلایل

د مېوو او فصلونو زکات په قرآن کریم، احادیثو او اجماع ثابت دی.

۱- قرآن کریم: الله جل جلاله په خپل مبارک کتاب قرآن کریم کې فرمایي: (وَآتُوا حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ)[۱]

ژباړه: تاسې د فصلونو زکات د لو په ورځ ورکړئ.

۲- حدیث: نبي اکرم صلی الله علیه وسلم په یو مبارک حدیث کې د عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په روایت فرمایي: ((هره هغه ځمکه چې د باران او سیلاب په اوبو خړوبېږي، لسم من به په زکات کې ورکوي او هغه چې په تکلیف او مشقت سره خړوبېږي شلم من به ترې په زکات کې اخیستل کېږي)).

۳- اجماع: ټول امت په دې اجماع کړې چې په میوو او فصلونو کې عشر واجب دی.

**د عشر د وجوب شرطونه:**

۱- ځمکه به خراجي نه وي، ځکه عشر او خراج په یوه ځمکه باندې یو ځای کېدای نشي.

۲- د حاصلاتو له اخیستلو څخه به موخه دګټو ترلاسه کول وي، بناءً په لرګیو کې زکات نشته، معنا دا چې په نلونو، درمو او د لرګیو په ډېرونو کې زکات نشته.

۳- ځمکه به د باران، ویالې او سیند په اوبو خړوبېږي، خو که چېرې په تکلیف او مشقت سره خړوبېده، بیا پکې عشر نشته، بلکې شلم من زکات دی.

۱- (الانعام/۱٤۱)

## هغه څه چې د میوو او فصلونو په زکات کې شرط نه دي

١- د کال تېرېدل ورته شرط نه دی.

٢- ټاکلی نصاب نه لري څومره میوه او حاصلات چې ونه او ځمکه وکړي، لسمه برخه به يې ورکوي.

٣- عقل او بلوغ ورته شرط نه دی، د لېوني او ماشوم په ځمکه کې هم عشر واجب دی.

٤- د ځمکې ملکیت هم ورته شرط نه دی، په دهقان او اجاره دار باندې هم عشر شته.

٥- د قرض (دين) او پور ورکول هم ورته شرط نه دی.

٦- پاتې کېدل او نه خرابیدل هم ورته شرط نه دی، بلکې په سبزیجاتو او مېوو کې هم عشر واجب دی.




- د خپل چاپېریال له هغو فصلونو څخه پنځه پنځه مثاله ورکړئ چې عشر په کې واجبېږي او دوه هغو ته ورکړئ چې شلم من په کې واجبېږي.

## د سرو او سپینو نصاب

د سرو زرو نصاب شل مثقاله دی یعني ٨٥ ګرامه او د سپینو زرو نصاب دوه سوه درهمه چې د ٥٩٥ ګرامو سره مساوي کېږي.

## په سرو اوسپینو کې د زکات اندازه

په سرو او سپینو زرو کې دوه نیم فیصده هغه وخت په زکات کې ورکول کېږي چې کله نصاب ته ورسېږي او کال وربانديې تېر شي، همدا راز څومره چې زیاتېږي بیا په هرو څلوېښتو روپوکې يوه روپۍ زکات دی.

### د بانک نوټونو زکات

په اوسنیو مروجو بانکي نوټونو کې زکات ورکول هغه وخت واجب دی چې نصاب ته ورسېږي او ددې د ارزښت ټاکل د سپینو او سرو زرو له لارې کېږي، معنا دا چې په څومره بانکي نوټونو باندې ۵۹۵ گرامه سپین زر او یا ۸۵ گرامه سره زر ترلاسه کېږي همدومره اندازه یې نصاب دی او دوه نیم فیصده به په زکات کې ورکوي. بیا که چېرې له دې څخه ډېرېدل، په هرو څلوېښتو روپو کې به یوه روپۍ ورکوي، ځکه اوسنیو مروجو بانکي نوټونو د سرو او سپینو زرو ځای نیولی او همدې بانکي نوټونو دا دواړه له چلند څخه غورځولي دي.

### چاته به زکات ورکول کېږي؟

هغه افراد چې زکات ورکول کېږي، اته ډلې دي، مالک کولای شي چې ټولو ډلو ته د خپل زکات برخې ورکړي او دا هم واک لري چې ټول زکات یوې ډلې یا یو تن ته ورکړي، دده غاړه خلاصېږي. علماوو له اتو ډلو څخه چې صحابه کرامو (رضوان الله علیهم اجمعین) پرې اجماع کړې وه یوه ډله چې (مولفة القلوب) ورته وایي د زکات د ورکړې څخه ویستلې ده، اوس دوی ته زکات ورکول روا نه دي پاتې لاندې اوو ډلو ته زکات ورکول کېږي:

۱- فقیر: هغه چاته ویل کېږي چې لږ مال لري خو نه د ده بسیا پرې کېږي او نه نصاب ته رسېږي.

۲- مسکین: هغه څوک چې هیڅ نه لري او یا له فقیر څخه کم مال ولري، مسکین دی

۳- هغه مامورین چې د بیت المال له لوري د زکات ټولولو لپاره ټاکل شوي وي.

٤- غلامان: هغه چې مالک ورته ټاکلی مال ښودلی او له ورکولو څخه وروسته آزادېږي.

۵- في سبیل الله: هغه حقیقي مجاهدین چې د جهاد اراده لري، خود جهاد امکانات و نه لري.

۶- قرضداران: هغه قرضدار چې د خپل پور خلاصولو توان نه لري.
۷- مسافر: هغه چې د خپلې کورنۍ او مال څخه لرې وي. له زکات څخه به ده ته دومره څه ورکول کېږي چې خپل کور ته پرې ورسېږي.

**مسأله**: د جومات او لارې جوړولو لپاره د زکات ورکول روا نه دي.

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په انفرادي او یا ګروپي شکل د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

## ارزونه

لاندنیو پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱- د مېوو او فصلونو زکات ته فقهاء کوم نوم اخلي؟ د وجوب د دلایلو بیان یې وکړئ.
۲- د سرو او سپینو زرو د زکات نصاب څومره دی او څومره زکات پکې واجبېږي؟
۳- څو ډلو ته زکات ورکول کېږي په تفصیل سره یې بیان کړئ؟

لاندې صحیحو جملو ته (✓) او غلطوته د (×) نښه کېږدئ:

۱- د سرو زرو نصاب شل درهمه دی او د سپینو زرو نصاب دوه سوه مثقاله دی. (   )
۲- هغه څوک چې هیڅ نه لري او یا د فقیر څخه کم مال ولري، مسکین دی. (   )

## کورنۍ دنده

د پورتنیو پوښتنو ځوابونه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

پنځوسم لوست

# حج



## د حج تعریف

حج په لغت کې: قصد ته وايي.

او په اصطلاح کې: د يو خاص ځای زيارت کول، په خاص وخت او خاصو کړنو سره، حج بلل کېږي.

## د حج حکم

د اسلام مبارک دين پنځم رکن حج دی، په هغه چا باندې چې استطاعت او قدرت د حج ولري فرض عين دی.

## د حج د فرضيت دلائل

د حج فرضيت په قرآن کريم، احاديثو او دامت په اجماع ثابت دی.

۱- قرآن کريم: الله جل جلاله فرمايي: ﴿وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلاً﴾ [۱]

د الله جل جلاله د رضا پخاطر په هغو مسلمانانو باندې د حج کول فرض دي چې د لارې توښه ولري.

۲- حديث: په احاديثو کې د اسلام مبارك دين پنځم رکن حج ښودل شوی.

۳- اجماع: د اسلامي امت ټول مجتهدين د حج په فرضيت متفق دي.

۱- (ال عمران/ ۹۷)

## د حج د وجوب شرطونه

فقهاء کرامو رحمهم الله تعالی د حج د وجوب لپاره، لاندې شرطونه ښودلي دي:

۱- اسلام: په کافر باندې حج نشته.

۲- عقل او بلوغ، نو په لېوني او ماشوم حج نشته.

۳- قدرت او استطاعت، قدرت او استطاعت په لاندې شیانو تحقق مومي:

الف: د بدن روغوالی (صحت)، یعنې داسې ناروغتیا ونه لري چې د سفر مانع گرځي.

ب: د لارې د تگ راتگ او خوراك مصارف باید ولري.

ج: د کور نه تر حج پورې لاره به په امن وي (امنیت).

د: که چېرې کومې ښځې د حج نیت کړی وي باید یو مسلمان محرم ورسره وي.

هـ: د حج کولو په وخت کې باید د حج مصارف په لاس کې ولري.

## د حج د صحت شرطونه

۱. اسلام.

۲. تمییز او عقل.

۳. احرام.

٤. په مخصوصو ځایونو کې د ښودل شویو عبادتونو اداکول، یعنې په عرفات کې د عرفې په ورځ درېدل او د کعبې شریفې نه د زیارت طواف کول، داسې نه چې د یو پر ځای بل وکړي.

٥. په خپل وخت کې د ښودل شویو عبادتونو کول.




- زده کوونکي دې پورتني مطالب په انفرادي او یا گروپي شکل د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

## ارزونه

الف ـ لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست:

۱. د حج د وجوب شرطونه څو دي؟ په لنډه ډول يې بيان کړئ.

۲. استطاعت په څه شي تحقق مومي؟ په لنډه ډول يې وليکئ.

۳. حج څه حکم لري؟ دليل سره يې ووایاست.

ب ـ لاندې خالي ځايونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

۱. حج په لغت کې....... او د فقهاوو په اصطلاح کې.................

۲. د حج د صحت شرطونه عبارت دي له..............،..............،............



## کورنۍ دنده

پورتنيو پوښتنو ته په خپلو کتابچو کې ځوابونه وليکئ.



يو پنځوسم لوست

# د حج فرایض او واجبات



د عرفات میدان (جبل الرحمة)



بیت الله الحرام

**د حج فرایض درې دي:**

۱- احرام،

۲- د زیارت طواف،

۳- د عرفې په ورځ عرفات کې دریدل.

**د حج واجبات:**

۱- له میقات نه د احرام تړل،

۲- په عرفات کې د لمر تر پریوتلو پورې تم کیدل،

۳- په مزدلفه کې د رڼتیني سبا له راختلو د لمر تر راختلو پورې تم کیدل،

۴- دجمراتو ویشتل،

۵- ذبح ( د قارن او متمتع حاجي لپاره)،

۶- د سر د ویښتانو حلق او یا تقصیر په خپل وخت کې،

۷- د جمراتو د ویشتلو تقدیم په حلق باندې،

۸- د اختر د ورځو نه د فرضي طواف نه تاخیرول،

۹- د صفا او مروه ترمنځ سعې کول،

۱۰- د سعې شروع له صفا نه،

۱۱- طواف وداع کول،

۱۲- د حجر اسود نه د طواف شروع کول،

۱۳- ښي خوا ته طواف کول،

۱٤- په اوداسه طواف کول،

۱۵- د عورت پټول،

۱٦- په احرام کې له ممنوعه کارونو څخه ځان ساتل، لکه: د ګنډل شویو جامو اغوستل، د سر پټول (د نارینه لپاره)، د نوکانو غوڅول او د ویښتانو تراشل او کمول.

**۳- په سعي کې باید لاندې کارونه مراعات شي**

۱- سعې (تګ) به له صفا څخه پیلوي.

۲- صفا او مروه ته به پورته کېږي.

۳- د هرې سعې په پیل کې به لاسونه پورته کوي مخ به قبلې ته کوي اوتکبیر به وایي.

٤- د سعې پر مهال به دعاګانې، تکبیرات، تسبیحات او تهلیلات وایي.

۵- سعې به له طواف څخه وروسته کوي.

٦- په اوداسه سره سعې کول سنت دي.

**۴- په مزدلفې کې باید لاندې کارونه په پام کې ونیول شي:**

۱- د اختر شپه تېرول په مزدلفه کې سنت دي.

۲- د ماښام او ماخوستن لمونځونه یوځای کول په یو آذان او اقامت سره په مزدلفه کې سنت دي.

۳- له مزدلفې څخه د لوبیا په اندازه کاڼي او ګټې راټولول، سنت دي.

٤- زیات تکبیر، تسبیح، تهلیل، استغفار او په نبي اکرم صلی الله علیه وسلم درود ویل،

۵- په آرام سره د مزدلفې نه منیٰ ته تلل.



## د جمرو ویشتل

ټولې جمرې درې دي:

۱- کبریٰ یا د عقبې جمره،

۲- وسطیٰ جمره،

۳- صغریٰ جمره.

## د عقبې جمره ویشتل

**د عقبې د جمرې موقعیت**: د عقبی جمره له منیٰ څخه مکې لور ته دریمه جمره ده، اوجمرة الکبری هم بلل کېږي.

**د عقبې جمرې د ویشتلو وخت**: د عقبې جمرې د ویشتلو وخت د لوی اختر ورځې د سهار راختلو څخه پیل او د یوولسمې ورځې د سپیده داغه پورې دوام مومي، که چېرې کوم حاجي له دې وخت څخه تاخیر وکړ دم؛ ورباندې لازمېږي.

غوره وخت یې د لمر ختلو نه تر زواله پورې دی.

۲- د درې واړو جمرو ویشتل د ذي الحجې په ۱۱-۱۲-۱۳ورځو کې:

**د ویشتلو وخت**: په یوولسمه او دولسمه ورځ باندې د لمر له زوال څخه تر غروبه پورې یې ویشتل سنت دي او له غروب څخه تر سهار ختلو پورې هم جواز لري مگر د کراهیت سره.

د اختر په څلورمه ورځ دجمراتو ویشتل اختیاري دي او وخت یې د سبا له ختلو څخه تر لمر پرېوتلو پورې خو د زوال نه مخکې یې ویشتل مکروه دي.

**مسأله**: په هر حاجي لازمه ده چې د اختر په دویمه او دریمه، درې واړه جمرات: (صغریٰ، وسطیٰ او کبریٰ ) وولي.

## د جمرو ویشتلو د صحت شرطونه:

۱- جمرې به په هغه شي باندې ولي چې د ځمکې له جنس څخه وي لکه کاڼی، لوټه.

۲- هره جمره به په بیلو بیلو اوو کاڼو ولي.

۳- کله چې درې واړه جمرې ولي؛ نو باید په ویشتلو کې یې ترتیب مراعت کړي، یعنې لومړی به صغریٰ بیا به وسطیٰ او په پای کې به کبریٰ جمره ولي.

## فعالیت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په انفرادي او یا ګروپي شکل د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

## ارزونه

۱- لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست.

الف: د حج واجبات څو دي؟ په لنډ ډول یې بیان کړئ.

ب: په سعي کې کوم امور باید مراعات شي؟

ج: په مزدلفې باندې د دریدلو سنتونه بیان کړئ.

د: د جمرو ویشتل څه وخت پیلیږي؟ او څه وخت پای مومي؟ لنډه اشاره ورته وکړئ.

هـ: د یو پرځای د بلې جمرې ویشتل څه حکم لري؟

۲- لاندې صحیحو جملو ته (ص) او غلطو ته د (×) علامه کیږدئ.

الف: حاجي به د صفا او مروه ترمنځ سعې د طواف څخه وړاندې کوي.(     )

ب: ټولې جمرې درې دي.(     )

## کورنۍ دنده

پورتنیو پوښتنو ته په خپلو کتابچو کې ځوابونه ولیکئ.





# د حج ډولونه

**۱- حج په درې ډوله دی:**

۱- قِــران.

۲- تمتع.

۳- افراد.

کوم یو پدې کې غوره دی؟

تر ټولو غوره قِران، ورپسې تمتع او بیا افراد دی.

**لومړی: د قِران حج**

د قران معنا: قران په لغت کې: د دوه شیانو نږدې کولو ته وایي.

او په اصطلاح کې: (د حج او عمرې یو ځای نیت کول او ادا کولو ته) د قِـران حج وایي.

**د قِران حج طریقه**

کله چې قارن مکې شریفې ته ننوت، خپله عمره سرته رسوي، خو له احرام څخه ځان نه اوباسي بلکې په احرام کې پاتې کیږي، کله چې د حج مراسم د ذي الحجې په اتمه شروع شي؛ نو بیا به په همدې احرام کې منیٰ ته روان شي او د فرضي حج مناسک به شروع کړي.

د قارن تکلیف نسبتاً متمتع او مفرد ته زیات وي، ځکه له کومې ورځې نه چې عمره یې کړې ده تر اختر پورې باید په احرام کې پاتې شي.

په قارن باندې د شکر دم واجب دی، یعنې قارن به د الله جل جلاله د شکر په خاطر یو څاروی حلالوي.

**دویم- د تمتع حج**

دحج په سفر کې د حج او عمرې ادا کولو ته چې په بیلا بیلو احرامونو باندې وي د تمتع حج وایي.

**د قران او تمتع حج فرق**

متمتع لومړی احرام صرف د عمرې لپاره تړي، کله یې چې عمره خلاصه کړه نو

خپل احرام لرې کوي او په عادي توګه خپل وخت تيروي، کله چې د حج وخت ورسيږي بيا د دويم ځل لپاره خپل احرام تړي.

خو قارن د عمرې او حج لپاره يو ځل احرام تړي، تر څو يې چې حج خلاص کړی نه وي تر هغه وخته پورې په احرام کې پاتې وي که مکې ته د حج د وخت نه يوه مياشت مخکې هم داخل شوی وي بيا هم د حج تر وخته پورې بايد په احرام کې پاتې شي.

په متمتع باندې هم د شکر دم لازميږي.

**دريیم: د افراد حج**

افراد په لغت کې: يواځې کولو ته وايي.

او په اصطلاح کې: هغه حج دی چې په هغه کې يواځې دحج کولو احرام وتړل شي او عمره ونه کړي.

په مفرد باندې د شکر دم نشته.

## فعاليت

- زده کوونکي دې دحج د اقسامو تفاوتونه په انفرادي او يا ګروپي توګه بيان کړي.

## ارزونه

الف ـ لاندې پوښتنو ته ځواب ووایاست.

۱- حج په څو ډوله دی؟

۲- قِران څه معنا لري؟ طريقه يې بيان کړئ.

۳- تمتع څه معنا لري؟ طريقه يې بيان کړئ.

ب ـ لاندې صحيحو جملو ته د (ص) او غلطو ته د (غ) نښه کیږدئ.

۱- د شکر دم يواځې په متمتع حاجي واجب دی. (      )

۲- قارن د عمرې او حج لپاره يو ځل احرام تړي (      )

## کورنۍ دنده

پورتنيو پوښتنو ته ځوابونه په خپلو کتابچو کې په ساده ژبه ووایاست.





# د حج متفرقه مسایل

## د حلق معنا

د وېښتانو خريل يا کلول (حلق) بلل کېږي (یواځې د نارینه لپاره)

## د تقصير معنا

د سرنه د وېښتانو کمول (تقصير) بلل کېږي.

## طواف الوداع

دا هغه طواف دی چې حاجيان يې له مکې نه د وتلو په وخت کې د وداع (رخصتی) په نيت سره کوي.

دې ته طواف (صدر) هم وايي، دا طواف په هغه حاجي واجب دی چې له ميقاتو څخه بهر اوسيږي او د مکې په اوسیدونکي باندې نشته.

## د طواف الوداع سقوط

طواف الوداع له معذورو ښځو څخه ساقطيږي.



### فعاليت

- زده کوونکي دې پورتني مطالب په انفرادي او یا ګروپي شکل د سوال او ځواب په میتود سره تکرار کړي.

## ارزونه

لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایئ:

۱. حلق او تقصیر څه معنا لري؟ تعریف یې کړئ.

۲. د طواف الوداع بل نوم څه دی، په چا واجب او کله ساقطېږي؟



## کورنۍ دنده

پورتنیو پوښتنو ته په خپلو کتابچو کې ځوابونه ولیکئ.